| شماره | مضمون | صفحه ۴کتاب |
|---|---|---|

# ځانکدن

يو ساعت دی چې په انسان باندې راځي آهونه دي چې له خولې وزي ، نفس دی چې تنګيږي ، دردونه دي چې که په غره باندې کېښودل شي ترې لاندې ويلې به شي ، پدې وخت کې ددنيا هر نعمت له انسان نه هېر شي ، هره خوشحالي چې په دنيا کې تېره شوې وي له انسان نه هېره کړي ، په دنيا کې چې څومره تکليفونه په انسان تېر شوي وي ورته سپک ښکاره شي ، د دنيا هر مصيبت اوس وړوکی ښکاره کيږي ، هغه پياله به اوس څښل کيږي چې خوند يې ډېر بد دی ، اوس په هغه دروازه ننوتل دي چې هر نفس به خامخا ورباندې ننوزي ، او تريخې اوبه دي چې هرڅنګه وي اوس به يې انسان تېروي .... دا د نفس د وتلو وخت دی چې زموږ په عاميانه ژبه کې ورته ځانکدن ويل کيږي او په عربي کې ورته حالة النزع، احتضار ، سکرات الموت او غمرات ويل کيږي ... او دا هغه حالت دی چې په قرآن کريم کې ډېرو آيتونو ورته زموږ د بيدارولو کوښښ کړی وو خو په موږ کې ځينې خلک بيدار شوي وو او موږ ته داسې ښکاره شوي وو لکه دا چې د زموږ لپاره نه د بل چا لپاره وي او يا داسې راته ښکاره شوي وو چې دا چېرته ډېر لرې دي .... الله χ موږ ته را ياده کړې وه :

وَجَاءتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ذَلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ (19) . [1]

ترجمه : او راغلې بې هوشي سختي د مرګ لپاره د دې چې په سترګو ئې ووينې په حق سره دا مرګ هغه دی چې وې به ته له ده څخه په ځنګ کيدونکی او نه وې پری اقرار کوونکی .

[1] سورة ق آية ١٩

قـرآن کـریـم چې کـلـه د ځـانـکـدن لـه حـالـت نـه تـعـبـیـر کـوي نـو فـرمـایـي :

**فَلَوْلا إذا بَلَغَتِ الحُلْقُوم * وأَنْتُم حِينَئِذ تَنْظُرُون * وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْكُم ولكِنْ لاَ تُبْصِرُون .** [1]

تـرجـمـه :نـو ولـې پـه هـغـه وقـت کـې چې ورسـيـږي (روح د سـږي) سـتـونـي تـه او (حـال دا وي چې) تـاسـې پـه دغـه وقـت حـاضـر اوریـدونـکـي نـظـر کـوونـکـي يـئ هـغـه تـه او مـوږ ډیـر نـژدې يـو هـغـه تـه (پـه عـلـم او قـدرت) لـه تـاسـې څـخـه مـګـر نـه ويـنـئ او نـه پـوهـيـږئ تـاسـې .

پـدې آیـتـونـو کـې الله χ مـوږ تـه د هـغـه وخـت تـصـور راکـوي چې کـلـه لـه انـسـانـي بـدن څـخـه روح رخـصـت اخـلـي او د بـدن لـه دنـيـا نـه را وزي او د بـدن لـه بـرخـو نـه پـه حـرکـت کـې شـي او وتـلـو تـه را ټـولـيـږي تـردې چې حـلـقـوم تـه را ورسـيـږي تـرڅـو د جـسـد څـخـه د ټـول عـمـر لـپـاره بـهـر شـي ... او دا يـو لـه هـغـه سـخـتـو حـالـتـونـو څـخـه دی چې پـه هـر ژونـدي بـانـدې خـامـخـا راتـلـونـکـی دی او هېڅـوک لـدې نـه خـلاصـی نـه لـري کـه د چـا سـل کـالـه عـمـر وي او کـه د چـا لـس کـالـه وي لـدې حـالـت نـه تـيـرېـدل پـکـې ضـروري دي ددې

امـلـه خـو ځـيـنـې سـلـف عـلـمـاء σ فـرمـايـي چې پـه انـسـان بـانـدې تـر ټـولـو نـه سـخـت حـالـتـونـه دری دي:

١. کـلـه چې مـلـكُ الـمـوت ν وويـنـي (چې کـلـه ددة روح اخـلـي).

٢. کـلـه چې لـه قـبـر نـه را پـورتـه شـي.

---

[1] **سورة واقـعة آيـة ٨٣ تـر ٨٥**

٣. كله چې د الله χ په وړاندې حساب ته ودرېږي او دی اوس نه پوهېږي چې الله χ به یې اوس كوم لوري ته لېږي اور ته او كه جنت ته .

كله چې د انسان ځانكدن شي پدې وخت كې به دده نظر كار وكوي ده ته به حق ښكاره شي ده ته به هغه څه ښكاره شي چې پيغمبرانو راوړي وو پردې به له ستركو نه لرې شي

ځانكدن داسې يو حالت دی كه الله χ انسان ته نور د هېڅ شي نه وېره نه وای وركړې هم خو چې صرف انسان پدې پوهېدلی چې مرگ مې حق دی او له ځانكدن څخه تېرېدل مې خامخا دي نو بيا هم د يو انسان لپاره پدې كې دومره عبرت شته چې له ده نه يې ددنيا خوشحالي اخيستې وای ، او ددې په اړه به له فكر نه فارغ شوی نه وای ، ډېره عجيبه خو دا ده چې كه انسان په ښه خوشحالي كې وای لكن ددې انتظار يې وای چې اوس به يو فوجي را ننوزي او دی به په سختو وهلو سره وهي نو د هغه خوشحالي نه به يې خوند نه وای اخيستی خو بيا هم انسان د دنيا په خوشحالي كې دی او هره ثانيه ددې امكان شته چې ملكُ الموت ν ورته راشي او دی په سختو وهلو سره ووهي لكن بيا هم دده ورته هېڅ پام او فكر نه دی هماغسې په خپل عيش كې مصروف دی علماء كرام σ فرمايي د توري د وار نه انسان ته ځانكدن ډېر سخت دی ځكه د توري په وار كې خو به لږ تر لږه چغه ووهي ، چا ته خوبه فرياد وكوي ، كېدای شي څوك درسره مرسته وكوي او كله چې د ځانكدن گذار په انسان كيږي نو مخكې لدې چې شروع پرې وشي د انسان ژبه وتړله شي بيا هېڅ نشي كولی ، هېڅوك نشته چې دی ورته فرياد وكوي پدې وخت كې درد په ده باندې آخري حد ته رسېدلی وي ، په هر اندام كې يې درد وي ، ډېر يې ارمان وي چې لږ تر لږه

فریاد مې کړی وای ، لږ تر لږه دا ناست خلک خو پدې پوه وای چې په ما څومره درد دی ... خو هېڅ هم نه کیږي د انسان روح له هر رګ نه په وتلو کې وي ، هر اندام په تدریج سره مړ کیږي ، خو د الله χ رحمت دی چې تر اوسه پورې دتوبې دروازه لا خلاصه ده ... د انسان پښې یخې شي ، بیا یې پنډۍ ، بیا یې نور ځان ترڅو چې حلقوم ته روح را ورسیږي او چې کله دا حالت شي نو د بنده په وړاندې د توبې دروازه بنده شي او رسول الله γ فرمایلي دي : **إن الله يقبل التوبة من العبد مالم يغرغر** (الله χ له بنده نه توبه قبلوي ترڅو چې د غرغرې حالت ته نه وي رسېدلی) دا هغه د غرغرې حالت دی ..

د ځانکدن حالت چې هرڅومره اسانه شي بیا هم سخت حالت دی خو په عمومي ډول دا په مؤمنانو باندې له کافرانو څخه اسان وي او کله کله په یو مؤمن باندې ځانکدن ددې امله سختیږي چې د ژوند په آخر کې د هغه ګناهونه ختم کړي او درجې یې لوړې کړي نو ددې امله چې په چا باندې ځانکدن سخت شي هغه ددې نښه نه ده چې ګنې ددهٔ اعمال نېک نه وو .

د ځانکدن په اړه الله χ فرمایي لکه مخکې چې تېر شو :

وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ۖ ذَٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيدُ .[1]

ترجمه : او راغلې بې هوشي سختي د مرګ لپاره د دې چې په سترګو ئې ووینې په حق سره دا مرګ هغه دی چې وی به ته له ده څخه په څنګ کېدونکی او نه وې پرې اقرار کوونکی .

[1] سورة ق آية ١٩

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُو أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُوا أَنْفُسَكُمُ ۖ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ آيَاتِهِ تَسْتَكْبِرُونَ . [1]

ترجمه : او كه ووينې ته (اى محمده !) ظالمان يعني كافران په هغه وخت كې چې ظالمان په (باطني او روحاني) سختيو د مرګ كې وي حال دا چې پرښتې (د عذاب) غځوونكې وي د لاسونو خپلو (د روح د قبض د پاره نو وائي دوى ته چې) راوباسئ تاسې ارواح خپل (چې ئى قبض كړو موږ كه ئې ايستى شئ يا ئې له عذابه وباسئ !) نن ورځ به جزا دركړل شي تاسې ته عذاب سپكوونكى (يعنى چې له سخت تكليف سره ذلت او رسوائي هم وي) په سبب د هغه چې وئ تاسې چې ويل به مو پر الله χ (وينا) ناحقه او وئ تاسې چې له آيتونو د ده څخه به مو تكبر كاوه (او نه به مو منل ، نو وبه ګورئ يوه قبيحه منظره).

په بل ځاى كې فرمايي :

فَلَوْلَا إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ (83) وَأَنْتُمْ حِينَئِذٍ تَنظُرُونَ (84) وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنكُمْ وَلَكِن لَّا تُبْصِرُونَ (85) . [2]

ترجمه : نو ولى په هغه وخت كې چې ورسيږى (روح د سږي) ستوني ته او (حال دا وي چې) تاسې په دغه وقت حاضر اوريدونكي نظر كوونكي يئ هغه ته او موږ ډير نږدي يو هغه ته (په علم او قدرت) له تاسې څخه مګر نه وينئ او نه پوهيږئ تاسې .

---

[1] سورة الانعام آية ٩٣
[2] سورة الواقعة

په بل ځای کې فرمايي :

**كَلَّا إِذَا بَلَغَتْ التَّرَاقِيَ (26) وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ (27) وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ (28).** [1]

ترجمه: نه ده داسی (چې دنیا خوښوي پر آخرت) کله چې ورسيږي (سا) هډوکي د ستوني ته او وبه ويلی شي (يعني وبه وائي هغه څوک چې چاپير له مريضه دي) څوک دی دم کوونکی (په هغه رنځور باندی چې جوړ شي او روح ئی بيرته ور وګرځوي) او يقين کړی هغه مريض) چې بېشکه په ده (باندی راغلی) دی وقت د فراق جدائي (له دنيا او خپلوانو).

حضرت عيسی v به حواريينو ته ويل : **يا معشر الحواريين ادعوا الله أن يهوِّن عليكم هذه السكرة .**

ترجمه : ای حواريينو د الله χ نه دعاء وغواړئ چې دا سکرة درته اسانه کړي (ځانکدن درته اسان کړي) .

د حضرت عائشې l .. نه روايت دی هغه فرمايي کله چې د رسول الله γ ځانکدن وو په خوا کې ورسره يو لوښی ايښی وو په هغه کې اوبه وې په هغه کې به يې لاس مبارک لوند کړو بيا به يې په خپل مخ باندې را کش کړو او ويل به يې : **ان للموت سكرات** (بېشکه د مرګ لپاره سختۍ دي) . [2]

له مرګ نه وروسته الله χ حضرت ابراهيم v ته وويل : **يا خليلي كيف وجدت الموت؟** (ای زما دوسته مرګ

---

[1] سورة القيامة آية ۲٦ تر ۲۸
[2] صحيح البخاري

درته څنګه وو؟) ده v ورته وویل : **کسفود محمَّی جُعل في صوف رطب، ثم جُذب** (لکه ګرم کړل شوي ازغي چې په لنديو وړيو کې کېښودل شي او ورڅخه کش کړل شي) بيا الله χ ورته وویل : **أما إنَّا قد هوَّنا عليك يا إبراهيمُ** (دا خو موږ په تا باندې اسان کړی وو ابراهيمه)

روايت شوی دی چې له مرګ نه وروسته الله χ له حضرت موسی v نه پوښتنه وکوله : مرګ د څنګه وو ده مبارک ورته وویل : **وجدت نفسي كالعصفور الحي حين يُقلى على المِقلى لا يموت فيستريح ولا ينجو فيطير** (ځان راته داسې ښکاره کېدو لکه ژوندی مرغۍ چې په تبۍ باندې کباب کول کيږي نه مړه کيږي چې په ارام شي او نه نجات ورکول کيږي چې والوزي) او په يوه روايت کې دي چې ده v وویل : **وجدت نفسي كشاة تُسلخ بيد القصّاب وهي حية** (ځان راته داسې ښکاره کېدو لکه پسه چې د قصاب په لاسې کې وي او ژوندی وي څرمنه ترېنه ويستله کيږي) .

چې دا ځانکدن په انبياوو کرامو داسې سخت وي نو زموږ د عامو مسلمانانو به څه حال وي؟ چې هغوی ته دومره د تکليف نه ډک تمام شوی دی نو موږ ترېنه ولې غافل شو ...؟

حضرت انس ابن مالک η فرمايي رسول الله γ فرمايل : **لَمْ يَلْقَ ابْنُ آدَمَ شَيْئًا قَطُّ مُذْ خَلَقَهُ اللَّهُ أَشَدَّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ«، قَالَ» :ثُمَّ إِنَّ الْمَوْتَ لأَهْوَنُ مِمَّا بَعْدَهُ .**

ترجمه : له کومې ورځې نه چې انسان پيدا شوی دی له مرګ نه سخت شی يې نه دي ليدلي بيا يې وفرمايل : او مرګ تر ټولو هغه حالتونو څخه اسان دی چې له مرګ نه وروسته راځي .

لکه مخکې چې مور ووېل : ځانکدن چې څومره اسانه شي بیا هم سخت وي او دا سختي یې له څو اړخونو څخه وي د مثال په توګه ...

- له یوې خوا په انسان باندې دده د ټول ژوند له دردونو څخه سخت درد وي ...
- له بلې خوا نه یې ژبه تړلې وي او هېچا ته د هغه حال په اړه نشي ویلی چې په ده تیریږي .
- له بلې خوا یې زړه غواړي چې ښه په زوره چغه وکوي لکن په وس کې یې نه وي .
- له بلې خوا یې په بدن کې ده ته محسوسه کیږي چې ساعت تر ساعت یې بدن کمزوری کیږي او دی پوهیږي چې دی د مرګ لوري ته روان دی ..
- له بلې خوا په خوا کې ورسره ناست خلک غمجن ښکاره کیږي نو دی پوهیږي چې دده حالت دوی ته خراب ښکاري .
- له بلې خوا له دنیا نه روان وي او په دنیا کې یې چې څه هم درلودل او د څه شي مالک وو اوس ټول پاتې کیږي .
- له بلې خوا یې اوس زړه کیږي چې الله χ ته راجع شي څومره پردي حقونه له ده سره دي ، له څومره خلکو سره یې زیاتی کړی ، د څومره خلکو حقوق یې پایمال کړي زړه یې غواړي چې د هرڅه نه له خلکو نه معافي وغواړي او له الله χ نه بښنه وغواړي او الله χ ته په سجده ځملي خو هېڅ کولی نشي ددې خبرو وخت اوس تېر شوی دی.
- او تر ټولو لویه خبره دا وي چې دی پوهیږي چې اوس دده مخه د آخرت خوا ته ده کوم ته چې ده تیاری نه دی کړی او الله χ له مخکې نه مور ته ویلي دي چې پدې وخت کې چې ستاسې ژبه بنده وي تاسې په خوله څه نشئ ویلئ خو

ستاسې سترګې به اوس تیزې وي هغه به داسې شیان وینې چې تاسې ته مخکې نه ښکاره کېدل الله χ فرمايي :

**لَقَدْ كُنتَ فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هَذَا فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَاءكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ (22)** . [1]

ترجمه : په تحقیق سره (په دنیا کې) وې ته په غفلت بیخبرۍ له دې ورځې د عذاب څخه نو بېرته مو کړه له تا څخه پرده د غفلت ستا ، نو سترګې ستا نن ډېرې تیزې دي (چې پرې وینې خپل ګرد (ټول) اعمال) .

- له بله پلوه شیطان د ځانکدن واله سره په خوا کې وي او پدې وخت کې زیات کوښښ وربانديې کوي چې دی له ایمان څخه خلاص کړي او په څه نه څه چل یې آخره خاتمه ور خرابه کړي او پدې وخت کې چې د الله χ مرسته له کوم بنده سره نه وي مشکله وي چې بنده په خپل زور باندې محفوظ شي ..
- له بله پلوه معلومه نه ده چې ملكُ الموت ν انسان ته په څه رقم شکل کې راځي او د هغه د شکل تعلق هم د انسان د اعمالو سره وي ځومره چې دده اعمال نیک وي دومره هغه ورته په ښه شکل کې راځي او ځومره چې اعمال خراب وي نو په بد شکل کې ...

حضرت ابو بکر بن ابي شیبة روایت کړی دی هغه فرمايي جابر بن عبد اللهη له رسول الله γ نه روایت کړی دی چې هغه موږ ته فرمایل : د بني اسرائیلو نه خبرې کوئ په هغوی کې عجيبه عجيبه

---

[1] **سورة ق آیة ٢٢**

كارونه وو .. بيا يې مړو ته يوه قصه وکوله ويې فرمايل :

**خرجت طائفة منهم فأتوا على مقبرة من مقابرهم فقالوا لو صلينا ركعتين و دعونا الله يخرج لنا بعض الأموات يخبرنا عن الموت قال : ففعلوا فبينما هم كذلك إذا طلع رجل رأسه بيضاء أسود اللون خلا شيء بين عينيه أثر السجود فقال يا هؤلاء ما أردتم إلى ؟ لقد مت منذ مائة سنة فما سكنت عني حرارة الموت حتى الآن فادعوا الله أن يعيدني كما كنت.**

ترجمه : په بني اسرائيلو کې يوه ډله خلک په يوه هديره باندې تېرېدل دوی وويل : کاش دوه ركعته مونځ مو کړی وای او له الله χ نه مو غوښتي وای چې مړي يې مړو ته را پاځولي وای او مړو ته يې د مرګ په اړه قصه کړې وای .. دوی همداسې وکول چې يو کس را پورته شو سپين سر يې وو تور رنګ يې وو د دواړو سترګو په مينځ کې يې د سجدو نښه وه دوی ته يې وويل : اې خلکو زما نه څه غواړئ؟ زما سل کاله کيږي چې مړ شوی يم خو تر اوسه پورې زما په بدن کې هغه ګرمي نه ده په قرار شوې چې د مرګ په وخت کې زما په بدن کې پيدا شوېده .. تاسې زما لپاره دعاء وکوئ چې زه هغسې په ارام شم لکه مخکې چې وم (دا د مرګ حرارت مې له وجود نه لاړ شي) ..

يعني سل کاله يې کېدل بيا يې هم د ځانکدن اثر په بدن کې محسوس کولو او دوی ته يې وويل چې ما ته دعاء وکوئ چې دا اثر راڅخه لاړ شي ..

أبو هدبة إبراهيم بن هدبة روايت کړی دی هغه فرمايي حضرت انس ابن مالک η فرمايل رسول الله γ فرمايل : **إن العبد ليعالج كرب الموت و سكرات الموت و إن**

**مفاصله ليسلم بعضها على بعض تقول : عليك السلام تفارقني و أفارقك إلى يوم القيامة.**

ترجمه : کله چې انسان د ځانکدن او د مرګ له سختيو تيريږي بندونه يې يو په بل سلام اچوي او يو بل ته وايي : پتا د سلام وي اوس ته لما او زه لتا څخه جدا کيږم تر قيامت پورې .

يو عالم د ځانکدن په اړه فرمايي :

**أن الموت أشد من ضرب بالسيوف و نشر بالمناشير و قرض بالمقاريض .**

ترجمه : بېشکه مرګ د تورې له وار نه ، په اره له اره کېدلو نه ، په قيچي له قيچي کېدلو نه سخت دی .

د حضرت شهر بن حوشب η نه روايت دی هغه فرمايي : له رسول الله γ نه د مرګ او د هغه د سختي په اړه پوښتنه وشوه رسول الله γ وفرمايل : **إن أهون الموت بمنزلة حسكة كانت في صوف فهل تخرج الحسكة من الصوف إلا و معها الصوف؟**

ترجمه : بېشکه اسانه مرګ دا سې دی لکه ازغی چې په وړيو کې نښتی وي او هغه ته ترېنه وباسې آيا کېدای شي چې ازغی له وړيو نه را وويستل شي او د هغه سره وړی را ونه وزي؟

## ملكُ الموت ν

ملكُ الموت ν د الله χ هغه فرښته ده چې کله انسان مړکيږي ددې دا وظيفه ده چې ساه ورڅخه واخلي

ددې په اړه د اهل السنة و الجماعة دا عقيده ده :

"الإيمان بملك الموت أنه يقبض الأرواح، ثم تُرَدُّ في الأجساد في القبور، وهو يتَّصف بصفات من القدرة والسلطان وعِظَم الخَلق، وغيرهما من الصفات التي جعلتْه قادرًا على قبض أرواح كثيرة في أماكن مختلفة بعيدة الأطراف في لحظة واحدة. [1]

ترجمه . اهل السنة و الجماعت پدې باندې ايمان لري چې ملكُ الموت ν د روحونو قبض كوي او بيا يې بېرته په قبرونو كې جسدونو ته ور ګرځوي ملكُ الموت ν په څه صفاتو باندې موصوف دی لكه د هغه سره خاص قدرت دی ، يو زور دی ورسره ، لوی بدن يې دی ، او داسې نور صفات الله χ وركړي دي چې هغه صفاتو دی د ډېرو ارواحو په قبض كولو باندې قادر كړی دی چې په مختلفو ځايونو كې وي او له يو بل څخه ډېر لرې وي لكن دده په وس كې دا شته چې د هغوی ارواح په يو ځل او په يو وخت كې قبض كړي .

د ملكُ الموت ν ذكر الله χ په قرآن كريم كې كړی دی : قُلْ يَتَوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ [2]

ترجمه : ووايه (ای محمده ! دوی ته) قبض كوي ارواح ستاسې فرښته د مرګ هغه چې مقرره شوې ده په تاسې (د پاره د قبض د ارواحو) بيا به رب خپل ته بيرته بوتلل شئ (پس له مرګ نه د حساب د پاره).

[1] تفسير القرطبي: 94/14، والتذكرة للقرطبي: 88/1
[2] سورة السجدة: آية ١١

حضرت عبد الله بن عباس η فرمايي : **خطوة ملك الموت ما بين المشرق والمغرب.** [1]

ترجمه : د ملكُ الموت ν يو قدم دومره دى لكه د مشرق نه تر مغرب پورې .

د امام مجاهد ρ نه روايت شوى دى هغه فرمايي **حُوِيت له الأرض، فجُعلت له مثل الطست يتناول منها حيث يشاء .** [2]

ترجمه : ملكُ الموت ν ته زمكه داسې كېښودل شويده لكه طشت (لويه كاسه) هغه چې وغواړې له هر ځاى نه يې خوراك وكوي نو كولى شي .

ملكُ الموت ν يوه فرښته ده خو الله χ دده د مرستې لپاره ده ته نورې فرښتې وركړې دي چې هغه دده تر امر لاندې كار كوي او لږ وروسته به د حضرت عمر بن عبد العزيز ρ په يوه تقرير كې راشي هغه فرمايي چې دا فرښتې داسې فرښتې دي كه ملكُ الموت ν ورته ووايي چې دا دنيا يوه نوړۍ كړه او تېره يې كړه نو هغه به يې همداسې كړي .

او ددې امله چې له ده سره نورې مرسته كونكې فرښتې دي امام طبري ρ په خپل تفسير كې فرمايي چې الله χ په يو ځاى كې فرمايي : **(تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا)** [3] (هغه بنده زموږ رسولان وفات (مړ) كوي) پدې آية كې د جمع تعبير شوى دى او په بل آية كې لكه مخكې چې تېر شو الله χ فرمايلي وو چې ملكُ

[1] كتاب "العظمة" لأبي الشيخ **(924/3)**

[2] تفسير الطبري: **98/21**

[3] سورة الأنعام آية **61**

الموت ν یې وفات کوي او دا واحد تعبیر دی نو اوس ددې دواړو آیتونو په مینځ کې ټکر نشته څکه کار ملكُ الموت ν کوي خو ده ته الله χ د مرستې لپاره نورې فرښتې ورکړې دي .

او بیا مخکې فرمایي : کېدای شي چې دا روح به همدا نورې فرښتې اخلي خو دده په حکم او په قرآن کریم کې چې ده ته نسبت کیږي لکه د سورة سجدې په ١١ آیة کې چې مخکې تېر شو معنی یې دا وي چې ددې په حکم یې کوي او د چا په حکم چې کوم کار وشي خلک د هغه کار نسبت د کار کونکي ته نه بلکه هغه مشر ته کوي چې د کار کولو امر او حکم یې کړی وي .

او امام ابن کثیر ρ فرمایي : د انسان څخه روح یوازې ملكُ الموت ν اخلي او نورې فرښتې دده سره په ملګرتیا را ښکته کیږي او ګرځي .

په اصل کې سوال دا دی چې په قرآن کریم کې د انسان د مړه کولو نسبت مختلفو ته شوی دی د مثال په ډول .

الله χ فرمایي :

قُلْ يَتَوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ [1]

ترجمه : : ووایه (ای محمده ! دوی ته) قبض کوی ارواح ستاسې فرښته د مرګ هغه چې مقرره شوې ده په تاسې (د پاره د قبض د ارواحو) بیا به رب خپل ته بیرته بوتلل شئ (پس له مرګ نه د حساب د پاره) .

---

[1] سورة السجدة : آیة ١١

په دې آيت کې نسبت يوې فرښتې ته شوی دی چې ملكُ الموت v دی .

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ .[1]

ترجمه :بېشکه هغه کسان چې وفات کړی وی دوی لره ملائکو (د مرګ).

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

وَلَوْ تَرَى إِذْ يَتَوَفَّى الَّذِينَ كَفَرُوا الْمَلَائِكَةُ .[2]

ترجمه :او كه ووينی (ای محمده !) هغه وخت چې قبض د روح کوي د هغو کسانو چې کافران شوی دی فرښتی.

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

وَلَوْ تَرَى إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُو أَيْدِيهِمْ .[3]

ترجمه : او كه ووينی ته (ای محمده !) ظالمان يعنی کافران په هغه وخت کې چې ظالمان په (باطني او روحاني) سختيو د مرګ کې وي حال دا چې پرښتې (د عذاب) غځوونکي وي د لاسونو خپلو .

پدې آيتونو کې ويل شوي دي چې ملائکې (ډېرې) انسانان مړه کوي (روح ترې اخلي)

---

[1] سورة النساء آية 97
[2] سورة الأنفال آية 50
[3] سورة الأنعام آية 93

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنْفُسَ حِينَ مَوْتِهَا[1] ...

ترجمه : الله χ راکاږی (قبضوی) نفسونه په وخت د مرګ د دوی .

پدې آيت کې الله χ د وفات کولو نسبت ځان ته کړی دی ...

نو ددې ټولو نه ځواب دا دی چې ملكُ الموت ν کله هم د يو نفس په مړه کولو نه دی قادر او نشي کولی يو نفس مړ کړي ترڅو ورته د الله χ له لوري اجازه نه وي شوې او هر نفس چې وفات کيږي نو د الله χ په اجازه سره اللهχ پدې اړه فرمايي :

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ كِتَابًا مُؤَجَّلًا[2]

ترجمه : او نشته هيڅ نفس لره دا چې مړ شي مګر په اذن (حکم) د اللهχ سره چې ليکلي شوي دي (دا مرګ) په يوه مقرر وخت کې (چې نه وړاندې او نه وروسته کيږی) ،

او په ځينې آيتونو کې يې چې ملكُ الموت ν ته نسبت شوی دی ځکه ده ته د کار امر کيږي او په ځينې آيتونو کې يې ډېرو ملائکو ته نسبت شوی دی ځکه د ملكُ الموت ν سره مرسته کونکې نورې فرښتې وي او يو روايت داسې دې چې له بدن نه

1 سورة الزمر آية 42
2 سورة آل عمران آية 145

نوري فرښتې ورته روح را ټول کړي چې کله حلقوم ته را ورسيږي نو ملكُ الموت ν يې را واخلي .[1]

د مرګ او ملكُ الموت ν په اړه د رسول الله γ يو اورد حديث دی حضرت براء بن عاذب η فرمايي رسول الله γ له موږ سره د يو انصاري په جنازه کې شريک شو چې موږ لاړو د قبر لحد جوړېدو رسول الله γ کېناستو موږ ورته شاوخوا کېناستو داسې غلي ناست وو لکه زموږ په سرونو چې مارغان ناست وي د رسول الله γ په لاس کې يو وړوکی لرګی وو چې په زمکه کې يې وهلو (چې انسان په وړوکي خلکي زمکه ګروي او د څه خبرې په اړه فکر کوي) بيا يې سر مبارک پورته کړو او دوه يا درې ځله يې وويل : **استعيذوا بالله من عذاب القبر** (له الله χ نه پناه وغواړئ د قبر د عذاب نه) بيا يې وفرمايل :

إن العبد المؤمن إذا كان في انقطاع من الدنيا وإقبال من الآخرة نزل إليه من السماء ملائكة بيض الوجوه كأن وجوههم الشمس معهم كفن من أكفان الجنة وحنوط من حنوط الجنة حتى يجلسوا منه مد البصر ثم يجيء ملك الموت حتى يجلس عند رأسه فيقول أيتها النفس الطيبة اخرجي إلى مغفرة من الله ورضوان فتخرج فتسيل كما تسيل القطرة من في السقاء فيأخذها فإذا أخذها لم يدعوها في يده طرفة عين حتى يأخذوها فيجعلوها في ذلك الكفن وفي ذلك الحنوط ويخرج منها كأطيب نفحة مسك وجدت على وجه الأرض فيصعدون بها فلا يمرون على ملأ من الملائكة إلا قالوا ما هذا الروح الطيب فيقولون فلان ابن فلان بأحسن أسمائه التي كانوا يسمونه بها في الدنيا حتى ينتهوا به إلى سماء الدنيا فيستفتحون له فيفتح له فيشيعه من كل سماء مقربوها إلى السماء التي تليها حتى ينتهي إلى السماء السابعة فيقول

[1] رفع إيهام الاضطراب عن آيات الكتاب؛ للشنقيطي ص **236**

الله عز وجل اكتبوا كتاب عبدي في عليين وأعيدوا عبدي إلى الأرض فإني منها خلقتهم وفيها أعيدهم ومنها أخرجهم تارة أخرى ؛ فتعاد روحه فيأتيه ملكان فيجلسانه فيقولان له من ربك فيقول ربي الله فيقولان له ما دينك فيقول ديني الإسلام فيقولان له ما هذا الرجل الذي بعث فيكم فيقول هو رسول الله فيقولان له وما علمك فيقول قرأت كتاب الله فآمنت به وصدقت فينادي مناد من السماء أن صدق عبدي فأفرشوه من الجنة وألبسوه من الجنة وافتحوا له بابا إلى الجنة فيأتيه من روحها وطيبها ويفسح له في قبره مد بصره ويأتيه رجل حسن الوجه حسن الثياب طيب الريح فيقول أبشر بالذي يسرك هذا يومك الذي كنت توعد فيقول له من أنت فوجهك الوجه يجيء بالخير فيقول أنا عملك الصالح فيقول رب أقم الساعة رب أقم الساعة حتى أرجع إلى أهلي ومالي .

ترجمه : کله چې مؤمن بنده له دنيا نه په تلو کې او آخرت ته په ورتلو کې شي نو له اسمان څخه ورته ملائکې را ښکته شي چې سپين مخونه يې وي لکه لمر داسې رڼا کوي له هغوی سره د جنت له کفنونو څخه کفن وي او د جنت له خوشبويانو څخه ورسره خوشبويي وي دا ملائکې ورڅخه لرې کيني ملکُ الموت ν ورته راشي او د هغه د سر سره کيني او ورته ووايي : ای مطمئن نفسه را وزه د الله χ مغفرت او د هغه رضا ته نو هغه نفس داسې را وزي لکه د اوبو څاڅکی چې د هغه لوښي نه توئيږي چې اوبه پکې وي په لاس کې يې واخلي په لاس کې يې د سترګو د رپ په اندازه هم نه حصاروي په هغه جنتي کفن کې يې کيږدي لکه د ښو مشکو داسې بوی ورڅخه ځي دوی هغه پورته يوسي چې د ملائکو د کومې ډلې سره تيريږي هغوی پوښتنه کوي چې دا ښکلی بوی د څه شي دی دوی ورته وايي دا د فلاني چې د فلاني زوی دی د هغه روح دی په نومونو کې به يې ښکلي هغه نومونه ياد کړي چې په کوم سره په دنيا کې يادېدو په

همدې حالت کې د دنیا اسمان ته ورسیږي د دروازې خلاصېدل وغواړي هغه دروازه ورته خلاصه شي بیا چې له کوم اسمان نه تیریږي هلته ملائکې ورسره ملګري کوي او بدرګه یې کوي ترڅو چې اوم اسمان ته ورسیږي هلته الله χ امر وکوي زما د بنده عمل نامه په علیین کې ولیکئ او د بنده روح مې بېرته زمکې ته یوسئ ځکه ما له همدې زمکې نه پیدا کړی دی او په همدې زمکه کې یې بېرته ګرځوم او بېرته به یې له همدې زمکې نه را وباسم بیا روح بېرته جسد ته راشي پدې وخت کې جسد په قبر کې وي بیا په قبر کې ورته دوه فرښتې راشي هغه یې را کینوي ورته ووایي : ستارب څوک دی؟ هغه ورته ووایي رب مې الله χ دی.

بیا ورته ووایي : ستا دین څه دی؟

هغه ورته ووایي : دین مې اسلام دی .

بیا ورته ووایي : داکس چې په تاسې کې مبعوث شوی وو څوک دی؟

دی ورته ووایي : هغه رسول الله γ دی .

فرښتې ورته ووایي : ستا علم څه دی؟

دی ورته ووایي : د الله χ کتاب مې ولوست او ایمان مې ورباندې راوړو .

بیا له اسمان نه یو اواز کونکی اواز وکوي چې زما بنده رښتیا وویل ، د جنت نه فرش ورکړئ ، له جنت نه جامه ورکړئ او د جنت نه یوه کړکۍ ورته را خلاصه کړئ بیا د جنت نه تازه هوا او د نعمتونو شکلی بوی ورته راځي او بیا یو کس ورته راشي چې ښې جامې یې وي او ښائسته مخ یې وي ښه بوی ترینه ځي ده ته به ووایي : زېری مې

دربانـدي دا هغه ورځ ده چې لـتـا سره يـې وعده کـېدلـه .

دی بـه ورځخه پـوښـتـنـه وکـوي تـه څـوک يـې؟ ډېـر ښه ښکـاره کـيـږې .

هغه بـه ورتـه ووايـي : زه سـتـا نـېک عمل يـم .

دی بـه ووايـي ای الله χ زر قـيـامـت کـړه چې زه خـپـل اهل تـه ورشم او خـپـل مـال تـه ورشم (خـپـل اهل تـه ووايـم چې زمـا پـه قـسمت کـې نـتـيـجه د کـامـيـابـي ده) .

او د کـافـر د مـرګ پـه اړه رسول الله γ فـرمـايـي :

وإن العبد الكافر إذا كان في انقطاع من الدنيا وإقبال من الآخرة نزل إليه من السماء ملائكة سود الوجوه معهم المسوح فيجلسون منه مد البصر ثم يجيء ملك الموت حتى يجلس عند رأسه فيقول أيتها النفس الخبيثة اخرجي إلى سخط من الله وغضب فتفرق في جسده فينتزعها كما ينتزع السفود من الصوف المبلول فيأخذها فإذا أخذها لم يدعوها في يده طرفة عين حتى يجعلوها في تلك المسوح ويخرج منها كأنتن ريح جيفة وجدت على وجه الأرض فيصعدون بها فلا يمرون بها على ملأ من الملائكة إلا قالوا ما هذا الروح الخبيث فيقولون فلان ابن فلان بأقبح أسمائه التي كان يسمى بها في الدنيا فيستفتح له فلا يفتح له ثم قرأ {لاتُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ.. فيقول الله عز وجل اكتبوا كتابه في سجين في الأرض السفلى فتطرح روحه طرحا فتعاد روحه في جسده ؛ ويأتيه ملكان فيجلسانه فيقولان له من ربك فيقول هاه هاه لا أدري فيقولان له ما دينك فيقول هاه هاه لا أدري فيقولان له ما هذا الرجل الذي بعث فيكم فيقول هاه هاه لا أدري فينادي مناد من السماء أن كذب عبدي فأفرشوه من النار وافتحوا له بابا إلى النار فيأتيه من حرها وسمومها ويضيق عليه قبره حتى تختلف أضلاعه ويأتيه رجل

قبيح الوجه قبيح الثياب منتن الريح فيقول أبشر بالذي يسوؤك هذا يومك الذي كنت توعد فيقول من أنت فوجهك الوجه يجيء بالشر فيقول أنا عملك الخبيث فيقول رب لا تقم الساعة.[1]

ترجمه : او كافر چې كله له دنيا څخه په تللو او آخرت ته په ورتللو كې شي نو ملائكې ورته له اسمان څخه را ښكته شي چې تور مخونه يې او توره بد بويه ټوټه ورسره وي نو لرې ورڅخه كيني ملكُ الموت ν ورته راشي د سر سره ورته كيني ورته ووايي : اې خبيثه نفسه راوزه د الله χ قهر او غصې ته نفس وډارشي او په بدن كې تيت او خپور شي بيا يې ملائكه په زور داسې راو باسي لكه له لندو وړيو څخه چې ازغي را وباسي پدې توګه يې ترينه را وباسي او چې كله يې راوباسي په لاس كې يې د ستركو د رپ په اندازه هم نه نيسي بيا يې په هغه توره بد بويه ټوټه كې كيږدي او داسې بوى ترې ځي لكه په دنيا كې چې تر ټولو بده مرداره وي نو پورته اسمان ته يې روان كړي چې د فرښتې له هر ټولګي نه تيريږي هغوى يې پوښتنه كوي دا بد بوى د څه شي دى؟ دوى ورته وايي دا د فلاني بن فلاني روح دى او په دنيا كې چې دده څومره بد نومونه وو هغه ورته استعمالوي چې د اسمان دروازې ته ورسيږي هلته به فرښتې ورته دروازه نه خلاصوي بيا رسول الله γ دا آيت ولوست چې الله χ فرمايي (ترجمه. دوى ته به د اسمان دروازې نه خلاصيږي) بيا به اللهχ امر وكوي چې دده عملنامه په سجين كې وليكئ په ښكتنۍ زمكه كې بيا به يې روح له هماغه ځاى نه را وغورځوي روح به يې بېرته جسد ته راشي دوه فرښتې به ورته راشي دى به كيني ورته به ووايي :

---

[1] رواه أحمد والحاكم وصححه الألباني في صحيح الجامع

رب د څوک دی ؟

دی به ورته ووايي : هاه هاه زه خو پدې نه پوهېږم .

فرښتې به ورته ووايي : دين د څه دی؟

دی به ورته ووايي : هاه هاه زه خو پدې نه پوهېږم .

بيا به ورته ووايي : دا كس چې په تاسې كې مبعوث شوی وو څوک دی؟

دی به ورته ووايي : هاه هاه زه خو پدې نه پوهېږم .

له اسمان څخه به اواز وشي چې زما دې بنده دروا‌غ وويل : د اور نه ورته فرش وركړئ او د دوزخ نه ورته يوه دروازه راخلاصه كړئ بيا به ده ته قبر ته د هغې ګرمي راځي او د هغه زهرجن اثرات به ورته راځي او قبر به ورته دومره تنګ شي چې دده هډوكي به يو له بل نه سره تېر كړي او يو سړی به ورته راشي چې ډېر بد شكل به يې وي ، بدې جامې به يې وي ، بد بوی به يې ځي هغه به ورته ووايي : د بدې ورځې زېری مې دربانديې دا هغه ورځ ده چې لتاسره يې وعده كېدله .

دی به ورته ووايي: ته څوک يې ستا له مخ نه شر ښكاره كيږي ؟

هغه به ورته ووايي : زه ستا بد عمل يم ... دی به وايي ای ربه قيامت مه راوله .. ای ربه قيامت مه راوله ...

يعني هغه كس چې مؤمن وي هغه ته فرښتې داسې ښكاره كيږي چې سپين مبارک او ښكلي مخونه يې وي او په لاسونو كې يې د جنت ښه بوى لرونكې كفن وي او د جنت خوشبويي ورسره وي او هغه كس چې كافر وي هغه ته فرښتې داسې ښكاره كيږي چې تور بدرنګ بد شكل مخونه يې وي او په لاسونو كې يې د دوزخ نه راوړي بد بويه او بد كفنونه وي .

## ملكُ الموت v د چا روح قبض كوي؟

د ملكُ الموت v مخې ته يوه تخته ايښې وي چې په هغې كې د ټولو خلكو نومونه ليكلي وي د چا چې عمر پوره كيږي له هغه تختې څخه د هغه نوم غيب كيږي بيا ملكُ الموت v د هغه روح اخلي ...

ملكُ الموت v څنګه كولى شي چې په يو وخت كې د يو كس روح په مشرق او د بل په مغرب كې واخلي؟

د ملكُ الموت v په اړه په ځانكړې موضوع كې به راشي چې دا دنيا ټوله ملكُ الموت v ته داسې ايښې ده لكه يوه كاسه چې يو كس ورڅخه خوراک كوي او هغه كس كولى شي چې له هرې برخې نه يې په اسانۍ سره خوراک وكوي.

په يو وخت چې په دنيا كې ډېر خلک مړه كيږي يا په كومه زلزله كې يو لک كسان يا كم يا زيات مړه كيږي يا په يوه سېلاب كې په زرګونو خلک مړه كيږي ملكُ الموت v ددې ټولو روحونه څنګه اخلي؟

ملكُ الموت ν د هغوی روحونه داسې اخلي لکه ډېرې شمعې چې لګېدلې وي او باد پرې راشي ټولې په يو دم مړې کړي .

امام قرطبي ρ په خپل کتاب التذکره کې يو باب ايښی دی (**باب لما جاء في صفة ملك الموت عند قبض روح المؤمن والكافر**) په هغه کې يې فرمايلي دي : زموږ علماء کرام σ فرمايي چې د ملكُ الموت ν کتل او هغه وېره چې دده له ليدلو سره زړه ته ور ننوزي داسې يو حالت او داسې يو کار دی چې له هغه څخه تعبير کول نا ممکن دي هغه ډېر سخت حالت دی او ډېر مشکل وخت دی او د هغې په حقيقت باندې صرف هغه څوک پوهيږي چې پدې حالت کې وي او دا موږ خلک چې پدې اړه کومې خبرې آورو هغه صرف قصې دي چې کيږي او مثالونه دي چې ويل کيږي .

## د ملكُ الموت ν په اړه حديث

رسول الله γ فرمايي کله چې زه د معراج په شپه اسمان ته پورته کړل شوم نو ما يوه فرښته وليده چې په لاس کې يې د نور يوه تخته وه دې فرښتې يوې بلې خوا ته نه کتل او صرف هغه تختې ته يې کتل او پداسې توګه يې ورته کتل لکه دا چې خفه وي ما حضرت جبريل ν ته وويل : دا څوک دی؟ ده راته وويل : دا ملكُ الموت ν دی د خلکو د روحونو په اخستلو باندې مصروف دی ...

رسول الله γ فرمايي : ما جبريل ν ته وويل : ما ور نږدې کړه چې خبرې ورسره وکوم هغه زه ور نېږدې کړم ما ورته وويل : ای ملكُ الموت ν دا چې څومره خلک مړه شوي او يا مړه کيږي د دوی

ټولو روحونه ته اخلې؟ هغه راته وویل : هو ما ورته وویل : ته یې پخپله ا خلې؟ هغه راته وویل : هو ... دا دنیا ماته χ الله داسې کړېده لکه د چا په لاس کې یو درهم چې په لاس کې یې نیولی وي او هرې خواته چې اړول وغواړي اړولی یې شي په دنیا کې داسې کور نشته چې زه په ورځ کې پنځه ځله نه ور ننوزم او کله چې د کوم کور خلک په مړي پسې وژاړي زه هغوی ته وایم : په هغه پسې مه ژاړئ بېشکه زه ستاسې کور ته بیا راځم بیا راځم ترڅو تاسې ټول ختم کړم .. .

ابو نعیم حافظρ په حلیة کتاب کې د مکحول ρ حدیث نقل کړی دی چې له واثلة بن الاسقعη نه روایت دی هغه له رسول الله γ نه روایت کوي چې هغه فرمایل :

و الذي نفسي بيده لمعاينة ملك الموت أشد من ألف ضربة بالسيف.

ترجمه : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په اختیار کې دی چې د ملک الموت لیدل د توري له زرو وارونو څخه سخت دي .

قاضي ابو بکر بن العربي ρ ذکر کړي دي چې کله ملکُ الموت ν خپل روح قبض کوي هغه به وایي :
و عزتك لو علمت من سكرة الموت ما أعلم ما قبضت نفس مؤمن .

ترجمه : ای الله χ زما د ستا په عزت قسم وي که ماته معلوم وای چې دا مرګ دومره سخت دی نو د مؤمن روح به مې کله هم نه وای قبض کړی .

## د ملکُ الموت ν نوم څه دی؟

دا خبره مشهوره ده چې د ملكُ الموت v نوم عزرائيل دى خو دا خبره تر كومه حده پورې صحيح ده دې نكتې ته ستاسې فام را ګرځوم .

پدې اړه امام ابن كثير ρ فرمايي :

اشتهر أن اسم ملك الموت عزرائيل ، إلا أنه لم ترد تسمية ملك الموت بهذا الاسم في القرآن الكريم ولا في السنة النبوية الصحيحة ، وإنما ورد ذلك في بعض الآثار والتي قد تكون من الإسرائيليات . [1]

ترجمه : دا مشهوره شوېده چې د ملكُ الموت v نوم عزرائيل دى لكن د ملكُ الموت v لپاره دا نوم نه په قرآن كريم كې شته او نه په احاديثو كې راغلى دى او دا په ځينو قصو كې راغلى دى چې هغه اسرائيلي (جعلي او مصنوعي) هم كېداى شي .

امام مناوي ρ پدې اړه فرمايي :

ولم أقف على تسميته (ملكُ الموت v) بذلك (عزرائيل) في الخبر . [2]

ترجمه : ماته يې دا نوم له كوم حديث څخه نه دى معلوم .

امام الباني ρ فرمايي :

"ونؤمن بملك الموت الموكل بقبض أرواح العالمين. " هذا هو اسمه في القرآن ، وأما تسميته بـ "عزرائيل" كما هو الشائع

[1] البداية و النهاية ٤٩/١
[2] فيض القدير

بين الناس فلا أصل له ، وإنما هو من الإسرائيليات اهـ.
ترجمه : موږ پدې ایمان راوړی دی چې ملكُ الموت v هغه فرښته ده چې د ارواح په ویستلو مقرره شویده او همدا (ملكُ الموت v) یې په قرآن کریم کې نوم دی او دا چې خلک ورته عزرائیل وایي لکه په ځینې خلکو کې چې مشهوره ده دا له اسرائیلیاتو (جوړو شویو قصو) څخه ده .

په وروستیو کې لوی عالم او شیخ حضرت ابن عثیمین ρ فرمایي :

(ملك الموت) : وقد اشتهر أن اسمه (عزرائيل) ، لكنه لم يصح ، إنما ورد هذا في آثار إسرائيلية لا توجب أن نؤمن بهذا الاسم ، فنسمي من وُكِّل بالموت بـ (ملك الموت) كما سماه الله عز وجل في قوله : (قل يتوفاكم ملك الموت الذي وكل بكم ثم إلى ربكم ترجعون) اهـ[1] .

ترجمه : ملكُ الموت v چې یو نوم یې عزرائیل مشهور شوی دی لکن دا صحیح نه دی دا په اسرائیلي قصو کې راغلی دی په موږ واجبه نه ده چې پدې نوم باندې ایمان را وړو بلکه موږ یې ملكُ الموت v بولو لکه الله χ چې په قرآن کریم کې ورته ملكُ الموت ویلي دي .

هغه کسان چې وایي چې د ملكُ الموت v نوم عزرائیل دی هغوی وایي چې پدې باندې اجماع ده هغوی وایي :

لقد نقل الاجماع على أن اسم ملك الموت عزرائيل عليه السلام : أبوحيان الاندلسي في النهر الماد والحافظ البيهقي في البعث والنشور والقاضي عياض في كتاب الشفا. وقد ورد أن اسم ملك الموت

[1] فتاوى ابن عثيمين (161/3)

عزرائيل فى حديث رواه الحافظ الطبرانى فى الطوالات والحافظ البيهقى فى حديث الصور. [1]

ترجمه : پدې باندې اجماع ده چې د ملكُ الموت v نوم عزرائيل دى دا خبره ابو حيان الاندلسي په النهر الماد كې حافظ بيهقي په البعث و النشور كې قاضي عياض په كتاب الشفاء كې كړېده او په يو حديث كې راغلي دي چې د ملكُ الموت v نوم عزرائيل دى روايت يې حافظ طبراني كړى دى په الطوالات كې او حافظ بيهقي په حديث الصور كې

او د امام قرطبي ρ په تفسير كې په ١٤ مه برخه كې د سورة سجدې د ١١ آية په تفسير كې هم وربانديې تصريح شوېده .

په وروستيو علماوو كې حضرت ابن بازر ρ هم په يو ځاى كې وربانديې تصريح كړېده هغه فرمايلي دي :

أما عزرائيل فالله يميته بقدرته العظيمة كما يشاء كما يميت غيره والموت ليس هو عزرائيل بل هو شيء آخر ،وإنما عزرائيل ملك موكل بالموت كما قال سبحانه : قل يتوفاكم ملك الموت الذي وكل بكم ...الآية

ترجمه : او عزرائيل به الله χ په خپل لوى قدرت سره مړ كوي څنګه چې د الله χ خوښه شي او لكه نور چې مړه كيږي او مرګ پخپله عزرائيل نه دى بلكه دا يو بل شى دى او عزرائيل ملكُ الموت v دى چې په مرګ باندې مقرر كړل شوى دى لكه الله χ چې

---

[1] الجامع لأحكام القرء ان، للإمام القرطبي الجزء 14 من الطبعة [سورة السجدة، الآية:11]

فرمايي (دوی ته وروايه چې تاسې مړه کوي هغه ملکه چې په تاسې باندې مقرره شوېده)

ابن تيمية ρ هم پدې نوم باندې تصريح کړېده هغه په مجموع الفتاواى جلد ١٦ صفحه ١٣ کې فرمايي :

**الحمد لله الذى عليه أكثر الناس أن جميع الخلق يموتون حتى الملائكة و حتى عزرائيل ملك الموت.**

ترجمه : حمد ثناء ده الله χ لره ... هغه چې د ډېرو خلکو عقيده ده هغه داده چې ټول خلک مړه کيږي حتى چې فرښتې هم مړې کيږي او حتى چې عزرائيل ملكُ الموت ν هم مړ کيږي . **و الله اعلم**

# اوس هم توبه قبلیږي

کله چې د انسان ځانکدن شروع شي او بیماري یې سخته شي او دی پدې پوه شي چې دا زما آخري بیماري ده بیا هم ناوخته نه ده اوس چې هم له خپلو ټولو ګناهونو توبه وباسي نو الله χ یې قبلوي او هغه کسان چې د داسې بیمار په خوا کې ناست وي که دا بیمار توبه نه وباسي نو دوی د ور په یاد کړي چې هغه توبه وباسي ترڅو چې د هغه حواس کار کوي نو د توبې په اړه او د الله χ د رحمت په اړه د ورته خبرې وکوي ترڅو هغه توبه وباسي ..

رسول الله γ فرمایي : **إن الله يقبل توبة العبد ما لم يغرغر** . [1]

ترجمه : الله χ د بنده توبه تر هغه وخته پورې قبلوي ترڅو چې د غرغرې حالت (هغه حالت چې روح له نور بدن نه را ټول شي او حلقوم ته را ورسي) .

او په همدې وخت کې انسان ته ملكُ الموت ν هم ښکاره شي او د ملكُ الموت ν له لیدلو سره انسان بیا پوه شي چې دده لاره کومه یوه ده ځکه ملكُ الموت ν چې په سپینه جامه ، ښه هیئت او له ښه بوی سره وي نو د بنده د نېکمرغي نښه ده او که په توره جامه کې ، له بد شکل سره ، او له بد بوی سره وي نو د بد مرغي نښه ده نو بیا توبه نه قبلیږي بیا د الله χ هغه قول صادق شي چې الله χ فرمایي :

---

[1] رواه الترمذي

فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا سُنَّتَ اللَّهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ فِي عِبَادِهِ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكَافِرُونَ. [1]

ترجمه : پس نه ؤ (دا کار) چی نفع ورسوی دوی ته ایمان د دوی هر کله چی وبه لید دوی سخت عذاب زموږ (طریقه ایښی ده الله χ) طریقه د الله χ هغه چی په تحقیق تیره شوی ده په بندگانو د دغه (الله χ) او زیان کاره شول په دغه ځای کې کافران (چی ښکاره شو هغه متمادی خسران د دوی).

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّىٰ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ ۚ أُولَٰئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا . [2]

ترجمه : او نشته (وعده د قبول د) توبی له پاره د هغو کسانو چې کوی دوی گناهونه تر هغه پوری چې راحاضر شی یو د دوی ته (اسباب د) مرگ نو وائي چې بېشکه ما توبه وېسته اوس او نه (قبلېدی شي توبه) دپاره د هغو کسانو چې دوی مړه شي حال دا چې دوی کافران وي، دغه کسان (چې د کفر په حالت کې مري، په عین غرغره کې توبه کوي) تیارکړی دی موږ دوی ده عذاب دردناک.

حضرت حسن بصري ρ فرمايي : کله چې ابلیس هم له جنت نه را ښکته شو نو ویې ویل : **بعزتك لا أفارق ابن آدم ما دام الروح في جسده.** (زما د ستا په عزت قسم وي

---

[1] سورة غافر آية ٨٥
[2] سورة النساء آية ١٨

چې ترڅو د انسان په بدن کې روح وي زه به ورڅخه نه جدا کېږم) الله χ ورته وويل : **وعزتي لا أحجب التوبة عن ابن آدم ما لم تغرغر نفسه** (زما د هم په خپل عزت قسم وي ترڅو چې هغه د غرغرې حالت ته نه وي رسېدلی (ترڅو چې د هغه روح حلقوم ته نه وي رسېدلی) زه به هغه ته د توبې دروازه خلاصه ساتم) .

## د ځانکدن احکام

تر هرڅه د مخه هغه کس چې ځانکدن یې وي نور خلک باید ورسره کیني هغه باید یوازې پرې نه ږدي اول ضروري ده چې د هغه کور واله ورسره کیني ، که نه وو بیا یې ملګري ، که دا هم نه وو بیا یې ګاونډیان .. او که ګاونډیان یې هم څوک نه وو نو بیا هر مسلمان چې کولی شي هلته ورسره کیني باید ورسره کیني او که خپلوان یې وو نو بیا په خپلوانو کې باید داسې کس ورسره کیني چې نېک اخلاق ولري او دیندار وي په خاصه توګه هغه کس ډېر غوره دی چې له ده سره یې مینه وي او که ممکنه وي چې ډاکټر ورسره کیني نو ښه خبره ده ماشومان او زنانه دې ورسره نه پرېږدي ځکه هغوی تحمل او صبر نشي کولی او که کومه ښځه صبرناکه وي نو که ورسره کیني پروا یې نشته .

او په دې وخت کې به داسې څوک ورسره په خوا کې کینوي چې هغه دده په مرګ نه خوشحال کیږي او داسې کس وي چې دده خوا خوږی وي او له ده سره همدردي لري .[1]

که د هغه کس سره چې ځانکدن یې وي جنب او حائضه ښځه کیني نو هېڅ ګناه پکې نشته .

---

[1] السراج الوهاج

مخکې لدې چې د هغه حالت خراب شي ورسره ناست کسان به ورسره خبرې کوي او هغه ته به ورپه زړه کوي چې و نه ډار شي الله χ مهربان ذات دی او دا چې ده ډېر عبادتونه کړي دي روژې یې نیولې دي انشاء الله هغه عبادتونه به د الله χ په وړاندې قبول وي او ده ته به الله χ د ټولو ګناهونو بښنه کړې وي ترڅو د الله χ رحمت ته د ده پوره امید پیدا شي او هغه څوک چې د اللهχ د رحمت په امید کې مړ شي الله χ وربانـدې رحم کوي حضرت انس بن مالک η فرمایي : أنّ النّبيّ صلى الله عليه وسلم دخل على شابّ وهو بالموت، فقال: كيف تجدك؟ قال: واللّه يا رسول اللّه إنّي أرجو اللّه، وإنّي أخاف ذنوبي، فقال رسول اللّه صلى الله عليه وسلم: لا يجتمعان في قلب عبد في مثل هذا الموطن إلاّ أعطاه اللّه ما يرجو وأمّنه ممّا يخاف.

ترجمه : رسول الله γ یو ځوان ته ورغلو چې د مرګ حالت یې وو ورته یې وویل : څنګه یې؟ ده ورته وویل : والله زه د الله χ نه امید لرم او له خپلو ګناهونو څخه ډارېږم رسول الله γ ورته وویل : پداسې وخت کې چې دا دواړه د یو انسان په زړه کې جمع شي الله χ ورته هغه ورکوي چې دده ورته امید وي او له هغه شي نه ورته امان ورکوي چې دی ورڅخه ډارېږي .

هغه کس چې حواس یې کار کوي او پدې پوهیږي چې نور زما ځانکدن دی نو هغه به هم په زړه کې همدا دواړه خبرې جمع کوي له الله χ نه به د رحمت امید کوي او دخپلو ګناهونو په اړه به ډارېږي .

همدارنګه که د چا حواس په ځای وي او دی پوهیږي چې زما ځانکدن دی نو خپلوانو ته د وصیت وکوي په خاصه توګه د خپل تجهیز او تکفین په اړه د ورته وواي او که په علاقه کې رواجي څه بدعتونه وي ورته د ووايي چې هغه د دده په جنازه ، تجهیز ، تکفین او تدفین کې نه کوي

لکه حضرت ابو موسى الاشعري η چې پوه شو چې دده ځانکدن دی ویې ویل : زما جنازه چې واخلئ نو تیز به ورسره ځئ او زما په جنازه کې به هیڅ ډول بدعات نه کوئ او چې کله مو خښ کړم قبر به مې ډیر نه پورته کوئ او د پاسه به وربانديې څه ابادي اونور کار نه کوئ .

همدارنګه چې کوم مال ورڅخه پاتې دي د هغې په اړه د وصیت وکوي په څومره برخه کې چې دده وصیت عملي کېدلی شي که په هغه کې دی خیرات کوي او یا چا ته ورکړه کوي الله χ به یې ده ته ثواب ورکوي .

همدارنګه هغه څوک چې حواس یې کار کوي او پوه شي چې دی مړ کیږي نو تر اوسه پورې ده ته د توبې دروازه خلاصه ده ترڅو چې دده روح حلقوم ته نه وي رسېدلی دی توبه ویستلی شي نو توبه د وباسي او له خپلو ټولو ګناهونو د همدا اوس د الله χ په حضور کې پښېماني ښکاره کړي نو الله χ یې اوس هم توبه قبلوي .

## د ځانکدن وخت

هغه کسان چې د داسې کس سره ناست وي چې ځانکدن يې وي نو د هغه لپاره څو سنتونه دي چې بايد ويې کوي .

## په الله χ باندې نېک ګمان ورکول

هغه کس چې حواس يې کار کوي او پدې پوهيږي چې اوس دده ځانکدن دی نو اوس به پدې يقين کوي چې الله χ به ما بښي او الله χ به زما ګناهونه ماته بښلي وي او زما ټول نېک اعمال به يې قبول کړي وي او لدې عقيدې سره چې يو مسلمان وفات شي نو د الله χ رحمت وربانديې کيږي ...

او که پدې وخت کې دا کس وارخطا وو او بيا بيا يې خپل ګناهونه ور يادول نو هغه کسان چې له ده سره ناست وي هغوی به ورته دده نېک اعمال ور په يادوي او ورته وايي به چې الله χ به تا وبښي تا مونځونه کړي ، روژې دې نيولې دي ... او داسې نور .. ځکه چې الله χ فرمايي : **أنا عند ظن عبدي بي فليظن بي ما شاء** (زه د خپل بنده له ګمان سره يم د هغه چې څنګه خوښه وي په ما د هغه ډول ګمان وکوي)

حضرت ابن مبارک ρ د حضرت سفيان ثوري ρ څخه نقل کوي هغه فرمايي چې حضرت عبد الله بن عباس η فرمايل : **إذا رأيتم بالرجل الموت فبشروه ليلقي ربه وهو حسن الظن به ، وإذا كان حياً فخوّفوه.**

ترجمه : کله چې تاسې يو کس ليدلو چې هغه وفات کېدلو نو تاسې هغه ته زېری ورکوئ (هغه ته د

الله χ رحمت او فضل وریادوئ او زیری ورکوئ چې الله χ به لتا سره ښه معامله وکوي) ترڅو هغه د الله χ سره پداسې حالت کې ملاقي شي چې په الله χ یې ښه ګمان وي او کله چې هغه ژوندی وو نو بیا تاسې هغه د الله χ له عذاب نه وډار کړئ (ترڅو نېک عملونه وکوي او اطاعت وکوي).

د حضرت جابر بن عبد الله η نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله γ له خپل وفات نه دری ورځې وړاندې فرمایل : **لا یموتن أحدکم إلا و هو یحسن الظن بالله.** [1]

ترجمه : پتاسې کې چې څوک هم مړ کیږي نو په الله χ باندې د ښه ګمان ساتي .

په بل حدیث کې حضرت انس بن مالک η فرمایي :

**أن النبي صلى الله علیه و سلم دخل على شاب وهو في الموت فقال :کیف تجدك ؟ فقال : أرجو الله یا رسول الله وأخاف ذنوبي ، فقال رسول الله صلى الله علیه و سلم : لا یجتمعان في قلب عبد مؤمن في مثل هذا الموطن إلا عطاه الله ما یرجو وأمنه مما یخاف.** [2]

ترجمه : رسول الله γ یو کس ته ورغلو چې هغه پداسې حالت کې وو چې وفات کېدو رسول الله γ ترې پوښتنه وکوله : څنګه یې؟ هغه ځوان وویل : د الله χ نه امید لرم او له خپلو ګناهونو زیات ډاریږم رسول الله γ ورته وویل : دا دواړه چې پداسې وخت کې (د مرګ په وخت کې) د یو انسان

[1] رواه مسلم و بخاري
[2] رواه ابن ماجة

په زړه کې جمع شي الله χ ورته هغه څه ورکوي چې دی یې امید کوي او له کوم شي نه چې ډاریږي له هغه نه امان ورکوي .

د حضرت انس بن مالک η نه د بل حدیث روایت شوی دی هغه فرمایي رسول الله γ فرمایل :

**لا يموتن أحدكم حتى يُحسن الظن بالله ، فإن حسن الظن بالله ثمن الجنة.**

ترجمه : پتاسې کې د څوک هم نه مړ کیږي مګر په داسې حالت کې د مړ شي چې په الله χ باندې یې ښه ګمان وي (چې هغه به زما ګناهونه وبښي او زما ټول نېک عملونه به قبول کړي) ځکه په الله χ باندې ښه ګمان د جنت قېمت دی .

پدې اړه حضرت فضیل بن عیاض ρ فرمایي :

خوف او رجاء (د الله χ له عذاب نه وېره او د هغه رحمت ته امید) په انسان کې داسې دي لکه په مارغه کې وزرونه لکن کله چې انسان په ښه حالت کې وي او جوړ وي نو ښه خبره داده چې په انسان کې وېره غالبه وي او په هر حالت کې له الله χ څخه ډاریږي او کله یې چې د مرګ وخت وي نو بیا وربانديې امید غالب وي او الله χ ته یې تمه وي چې هغه به ما وبښي او لما سره به ښه معامله وکوي .

یو لوی عالم حضرت سوار بن عبد الله ρ فرمایي :

زما والد محترم چې کله وفات کېدو د ځانکدن وخت یې وو راته یې وویل : ماته اوس د رخصتونو

خبري وكوه او داسې خبري راته وكوه چې په هغه كې په لږ عمل ډېر ثواب وي او داسې خبري راته وكوه چې كه انسان كوم كار ونه كوي هم الله χ يې معاف كوي ترڅو مې په الله χ باندې ګمان ښه شي ځكه په الله χ باندې له ښه ګمان سره مړ كېدل د رحمت سبب كيږي .[1]

## قبلې ته مخ كول

كله چې د چا ځانكدن شروع شي كه اسانه وه نو مخ يې دې قبلې ته واړوي او پداسې ډول يې د څملوي چې چې كله يې مخ قبلې ته اړوي نو دی په ښي اړخ باندې څملي او كه چېرته بيمار ته پكې تكليف وو نو بيا د تكليف نه وركوي.

او ځينې علماء كرام σ فرمايي چې ښه داده چې پښې يې قبلې ته اوږدې كړل شي شا په تخته څملول شي او بيا يې تر سر نه څه شی ور لاندې كړل شي ترڅو يې مخ قبلې ته شي اسمان ته نه شي چې پدې حالت كې وفات شي نو د هغه سترګې او د هغه خوله پټول هم اسان شي او نور اندامونه يې هم تر ممكنه حده پورې له كږيدلو نه وساتل شي او ددې ټولو برسېره پداسې حالت كې د ساه وتل هم اسان وي .

## تلقين كول

رسول الله γ فرمايي : **من كان آخر كلامه لا إله إلا الله دخل الجنة.**

[1] موسوعة ابن ابي الدنيا

ترجمه : د چا چې په دنیا کې آخري خبره لا اله الا الله وي هغه به جنت ته داخلیږي .. نو ددې امله هغه کسان چې د ځانکدن لرونکي بیمار سره ناست وي هغوی به دا کوښښ کوي چې ددې کس په خبرو کې آخري خبره همدا کلمه شي نو ددې امله به په خوا کې په لوړ اواز سره وایي **اشهد ان لا اله الا الله** پداسې توګه به یې ورته وایي چې دی یې هم ورسره ووایي او ده ته به وربانديې امر نه کوي چې ته یې هم ووایه او کله یې چې یو ځل وویله نو بیا بیا یې دې وربانديې نه تکرار کوي او که یې نورې خبرې وکولې نو بیا یې دې وربانديې تکرار کړي یعني کوښښ به کیږي چې دهغه په ژبه آخري ځل همدا مبارکه کلمه راولي.

رسول الله γ فرمایي : **لقّنوا موتاكم لا إله إلاّ اللّه** (خپلو مړیو ته د ځانکدن په وخت کې په خوله کې کلمه ورکړئ) رسول الله γ هغه کسانو ته مړي وویل چې ځانکدن یې وي ځکه لږ وروسته مړه کیږي .

څرنګه چې په حدیث کې وربانديې په ټینګه سره امر شوی دی نو امام قرطبيρ فرمایي : د ځانکدن په حالت کې بیمار ته په خوله کې کلمه ورکول پدې ناستو خلکو بانديې واجب دي .... لکن جمهور علماء کرام σ فرمایي سنت دي .

او سنت هم یوازې دا په خوله کې ورکول دي **لا اله الا الله** که محمد رسول الله وربانديې زیات شو نو ښه خبره ده لکن سنت نه ده ځکه په حدیث کې ورسره نشته .

که د ځانکدن په وخت کې د بیمار نه څه د کفر کلمې د خولې نه وزي نو په ده بانديې به د کفر حکم نه کیږي او له ده سره به د مسلمانانو د

مړیو په څېر رویه کیږي په هماغه ډول به یې جنازه تکفین او تجهیز کیږي .

په بل حدیث کې حضرت عثمان η فرمایي : رسول الله γ فرمایل : **إذا احتضر المیت فلقنوه لا إله إلا الله فإنه ما من عبد یختم له بها موته إلا کانت زاده إلی الجنة.** [1]

ترجمه : کله چې د مړي ځانکدن شو نو **لا اله الا الله** ورته په خوله کې ورکړئ ځکه شان دا دی چې یو بنده پداسې حالت کې وفات شو چې آخره خبره یې دا وي نو دا یې بیا جنت ته د تلو لپاره توښه کیږي .

حضرت عمر بن الخطاب η فرمایي :

**احضروا موتاکم و لقنوهم : لا إله إلا الله و ذکروهم فإنهم یرون ما لا ترون.**

ترجمه : د هغه کسانو سره کینئ چې د هغه ځانکدن وي او مړه کیږي او هغوی ته په خوله کې **لا اله الا الله** ورکوئ او هغوی ته ذکر کوئ (هغوی یوازې مه پریږدئ او هلته ورسره په خوا کې ښې خبرې او د الله χ ذکر کوئ) ځکه هغه داسې شیانویني چې تاسې یې نه وینئ .

## په تلقین کې زیاتی نه کول

ځینې خلک داسې وي چې کله د داسې چا سره ناست وي چې د هغه ځانکدن وي نو هغه بېچاره ارام ته نه پریږدي او مسلسل هغه ته لګیا وي او کلمه ورته وایي تردې چې هغه تریږنه تنګ شي بلکه په

[1] موسوعة ابن ابي الدنیا

کار داسې ده لکه مخکې چې موږ تېره کړه چې کلمه د ورته تکرار کړي چې هغه يې يو ځل ووايي نو دى ترېنه بيا چُپ شي او چې کله هغه نورې خبرې وکولې نو د هغه خبرو نه وروسته د ورته بيا کلمه وايي چې کله بيمار وويله نو تلقين کونکى د بيا چُپ شي د تلقين مطلب دا دى چې د بيمار په آخرو خبرو کې يوازې کلمه پاتې شي دا مطلب يې نه دى چې دى اوس پدې آخر وخت کې بايد ذکر ډېر وکوي.

امام ابن مبارک ρ فرمايي :

لقنوا الميت لا إله إلا الله فإذا قالها فدعوه.

ترجمه : په ځانکدن کې کس ته په خوله کې **لا اله الا الله** ورکړئ کله يې چې وويله بيا يې پرېږدئ ..

حضرت حسن بن عيسى ρ فرمايي : ماته ابن مبارک ρ وفرمايل کله چې زما ځانکدن وو نو : **لقني - يعني الشهادة - و لا تـُعِدْ عليَ إلا أن أتكلم بكلام ثان .**

ترجمه : ماته د کلمې تلقين کوه او بيا بيا يې را باندې مه را ګرځوه مګر که ما څه نورې خبرې کولې بيا يې راته بيا تکرار کوه .

## خبرې ورسره ډېرې نه کول

پدې وخت کې به کوښښ کيږي چې هغه ارام ته پرېښودل شي او هغه مجبور نه کړل شي چې ډېرې خبرې وکوي د مثال په ډول ما ليدلي دي چې د ځانکدن سره ناست خلک وي يو څوک ورته راشي ورته ووايي : ته سترګې خلاصې کړه ماته وګوره زه څوک يم؟ ته څنګه يې؟ څه ته د زړه کيږي؟ څه خبرې وکوه کنه ... دا ټولې بې ځايه خبرې دي

دا خبرې داسې چا ته کول په کار دي چې هغه بیمار وي خو د ځانکدن حالت یې نه وي او هغه چې معلومه وي چې دده ځانکدن دی باید پرېښودل شي چې په ارام وي صرف چې کله هغه خپله څه خبره وکوي نو بیا د له هغه وروسته کلمه وربانديې تېره کړي بیا چې هغه چُپ وي نو څوک دې په زور هغه خبرو کولو ته نه مجبور کوي البته که چېرته څه ضروري خبره وي د مثال په ډول د چا امانت ورسره وي که څوک پوښتنه ترې وکوي چې دا امانت د چا دی؟ دا چا له ورکول غواړي؟ یا نور دېته ورته خبرې نو هغه کول په کار دي هغه هم پداسې توګه چې په ارام سره به ترې پوښتنه وشي او هغه ته به تکلیف پرې نه ورکول کیږي .

## تلاوت ورسره کول

هغه کس چې ځانکدن یې وي په خوا کې ورسره تلاوت کول مستحب دي په مسند الفردوس کې د حضرت ابي الدرداء η نه روایت شوی دی هغه فرمایي رسول الله γ فرمایل : **ما من ميّت يموت فتقرأ عنده يس إلاّ هوّن الله عليه** (د کوم مړي په خوا کې چې سورة یس تلاوت کیږي په هغه باندې ځانکدن اسانه کیږي)

همدارنګه امام احمد ρ په خپل مسند کې نقل کړي دي هغه فرمایي : **كانت المشيخة يقولون: إذا قرئت (يس) عند الموت خفّف عنه بها.**

ترجمه : شیوخو به فرمایل کله چې د مرګ په حالت کې د چا په خوا کې د سورة یس تلاوت وشي په هغه باندې مرګ اسانه کیږي .

## حلق یې لوند ساتل

هغه کسان چې د ځانکدن واله کس په خوا کې ناست وي هغوی به کوښښ کوي چې د بیمار حلق (ستونی) ورځخه وچ نشي او بیا بیا یې په اوبو یا بل شي باندې ور لوند کړي ځکه د ځانکدن د سختي له امله د هغه ستونی وچیږي هغه ته تري سخت تکلیف وي او اکثر هغه ددې سختي بیان کولی نشي او همدارنګه چې حلق یې وچ شي بیا هغه د شهادت په کلمه باندې هم تلفظ نشي کولی او همدارنګه که بل څه ویل غواړي نو نشي ویلی نو ددې امله به چې په هر ډول وي د هغه ستونی لوند ساتي او ښه طریقه یې داده چې پاک مالوچ په اوبو کې لانده کړي او دده په خول کې ترینه بیا بیا اوبه ور و څڅوي ..

## دعاء ورته کول

هغه کسان چې دده په خوا کې ناست وي هغوی به دده د اساني لپاره دعاء کوي او د الله χ نه به غواړي چې دا سخت حالت او هغه څه چې له دې نه وروسته پدې راځي ټول دده لپاره اسانه کړې او دده مشکلات ورته حل کړې او پدې مجلس کې به نورې خبرې نه کیږي صرف دعا ګانې ، تلاوت او د اللهχ ذکر به کیږي او دا حالت هم له هغه حالتونو څخه شمار کړل شوی دی چې دعاء پکې قبلیږي نو ناست کسان د د بیمار او خپل ځان لپاره هم ډیرې دعا ګانې کوي .

## د هغه د تکلیف خیال ساتل

هغه کسان چې د داسې کس په خوا کې ناست وي چې د هغه ځانکدن وي نو باید په ذهن کې وساتي چې هغه کس پدې وخت کې په تکلیف کې دی او پداسې تکلیف کې دی چې هغه هم هیڅ نشي کولی او خپله هم یو مجبور کس دی او دا څه چې په ده باندې دي هغه یې له ځانه نشي لرې کولی نو ددې امله ځینې خلک ددې په ځای چې هغه ته د اساني دعاء وکوي هغه ته لا زیات د تکلیف لامل کیږي د هغه په خوا کې ژاړي ، د هغه په خوا کې فریاد کوي د ځینې سړي ښځه ورته چیغه کوي چې ته ځې نو ما چاته پریږدې؟ پدې سره هغه نور هم غنجن کیږي او هغه هم نه غواړي چې لدې نه لاړ شي نو په خپله خوښه خو نه دی روان چې ښځه ترینه پوښتنه کوي چې دا چا ته پریږدې او د هغه د تکلیف سره سره دا غم په زړه ورشي چې دا به اوس چاته پاتې کیږي او ځینې یې واړه بچي ور نیږدې کړي ورته وایي د خپل زوی په سر خو د د آخري ځل لپاره د مینې لاس کیږده ، له ده سره مینه وکوه ، دا به اوس چاته پلار جان وایي ، دا ته چاته پریږدې ددې ټولو خبرو نه هیڅ فایده نشته البته تاوان یې ډیر زیات دی هغه کس چې د ځانکدن په حالت کې دی لدې خبرو سره د هغه په

تکلیف کې زیادت راځي او د بیماري له تکلیف سره سره هغه ته یو ډول غم ورکول دي چې دا له هغه سره یو ډول ظلم دی .

ددې امله موږ مخکې یاده کړه چې د ځانکدن په وخت کې بیمارته د داسې کسانو په خوا کې ضرورت دی چې هغه له یو لوري نه هوښیار وي او له بلې خوا نه دیندار وي ترڅو پدې آخري وخت کې له یوې خوا هغه ته د دیندارو خلکو صحبت نصیب شي او له بلې خوا هغه که د تکلیف احساس کوي خو د غم احساس ورنه کړي .

## بې ځایه تکلیف نه ورکول

په ځینې ځایونو کې داسې رواج وي چې هغه کس چې ځانکدن یې وي هغه ته په داسې شیانو تکلیف ورکوي چې هغه ته څه ضرورت نه وي د مثال په ډول په ځینې سیمو کې رواج دی چې خلک پوه شي چې د ښځې ځانکدن دی هغې په لاس او پښو باندې نکریزي ایږدي نه صرف چې دا یو رواج بولي بلکه دا سنت هم بولي لکن په حقیقت کې ددې له سنت والي سره هیڅ کار نشته او په فتاوا دار العلوم دیوبند کې د یوې پوښتنې په ځواب کې لیکلي چې دا سنت نه بلکه بالکل ناروا دي .[1]

[1] فتاوی دارالعلوم دیوبند ج ٥ ص ٢٤٥

# سترګې او خوله يې ور پټول

چې کله يې ساه وزي نښه يې دا وي چې اندامونه يې ټول نرم شي ، نفس يې قطع شي او زړه يې ودريږي نو دده چې کوم مهربان خپل وي هغه به يې سترګې په نرمۍ ور باندې پټې کړي يوه سپينه ټوټه به را واخلي تر زنه به يې لاندې ورته تېره کړي او پاس په سر به يې ور غوټه کړي چې خوله يې خلاصه پاتې نشي.

هغه څوک چې دده سترګې ور پټوي د هغه لپاره مستحب دي چې ووايي :

**بسم الله و على ملة رسول الله اللهم يسر عليه امره و سهل عليه ما بعده و اسعده بلقائک و اجعل ما خرج اليه خيرا مما خرج عنه .** [1]

ترجمه : د الله χ په نوم او د رسول الله γ په ملت اى الله χ دده کار ده ته اسانه کړي او ددېنه وروسته چې په ده کوم حالتونه راځي هغه ورته اسان کړي او په خپله لقاء باندې يې بختور کړې او هغه چې دى ور ووتلو هغه ځاى تر هغه ځاى نه ورته غوره کړې چې دى ترېنه ووتلو .

لاس او پښې به يې هموار کړي که تر جنازې پورې يې وخت ډېر وي په ګېډه يې دې څه وسپنه يا لنده خټه په کوم لوښي کې يا بل شى کيږدي چې ونه پړسيږي .

له زمکې نه به يې په لږ لوړ کوم شي کې کيږدي چې د زمکې لوندوالى ورته ونه رسيږي .

تر څومره حده پورې چې کېدلى شي د دوستانو په را خبرولو کې به يې کوښښ وشي ترڅو چې غسل نه

[1] التبيين

وي ورکړل شوی دده په خوا کې به تلاوت نه کيږي مکروه دی .

## واقعات

## د حضرت آدم ν وفات

کله چې حضرت آدم ν وفات کېدو د هغه زوی حضرت شيث ν له ده سره وو محمد بن اسحق ρ فرمايي : کله چې د حضرت آدم ν د وفات وخت شو نو خپل زوی شيث ν يې را وغوښت هغه ته يې د شپې او ورځې د ساعتونو او د هغې د تقسيماتو په اړه معلومات ورکړل او په هغه ساعتونو کې يې عباتونه ور وښودل او حتی چې څه وخت وروسته د طوفان د راتلو په اړه يې هم ورته وويل او ويل کيږي چې په دنيا کې څومره نسل دی دا ټول د حضرت شيث ν اولاد دي او د آدم ν له بل کوم اولاد نه نسب نه دی پاتې شوی والله اعلم .

کله چې آدم ν وفات شو دا د جُمعې مبارکه ورځ وه ملائکو له جنت نه کفن او خوشبويي ورته راوړل الله χ ورته را لېږلو وو او دده د وفات له امله يې حضرت شيث ν ته تعزيه وويله .

محمد بن اسحق ρ فرمايي : کله چې آدم ν وفات شو لمر او سپوږمی تر اوو شپو او ورځو پورې رڼا نه کوله .

حضرت يحی بن ابي ضمرة السعدي ρ فرمايي : يو کس په مدينه منوره کې خبرې کولې ما پوښتنه وکوله دا کس څوک دی چې خبرې کوي؟ خلکو راته

وويل دا حضرت ابي بن كعب η دى هغه په خپلو خبرو كې فرمايل :

كله چې حضرت آدم ν سخت بيمار وو او د مرګ وخت يې نيږدې وو زامنو ته يې وويل : د جنت ميوو ته مې زړه كيږي زامن يې را ووتل بهر يې په خپلو كې سره له يو او بل نه پوښتنه كوله چې دا د جنت ميوې ده ته اوس چېرته وګورو؟ ملائكې په مخه ورغلې چې د جنت كفنونه او خوشبويي او نور ډېر شيان ورسره وو او د آدم ν په لور را روانې وې له دوى نه يې پوښتنه وكوله : اې د آدم زامنو چېرته ځئ او په څه شي پسې ګرځئ؟ دوى ورته وويل : پلار مو بېمار دى او وايي چې د جنت ميوې ته مې زړه كيږي موږ ګورو كه يې چېرته ورته پيدا كړو .

ملائكو ورته وويل : ځئ لاړ شئ ستاسې پلار وفات كيږي .

كله چې حضرت حواء O ملائكې وليدلې هغه پوه شوه چې دا به اوس دده روح اخلي نو حضرت آدم ν ته يې ورمنډه كړه او هغه ته ور نيږدې شوه حضرت آدم ν ورته وويل : څه ما اوس د خپل رب له فرښتو سره پرېږده حضرت حواء O ترېنه لرې شوه ملائكې ور نيږدې شوې روح يې ترېنه واخيست ، بيا يې غسل وركړو ، بيا يې كفن وركړو ، خوشبويي يې ورباندې ولګوله قبر يې ورته جوړ كړو لحد واله بيا يې ورباندې مونځ وكولو بيا يې په قبر كې په لحد كې كېښود بيا يې ورباندې خاورې واړولې بيا يې د حضرت آدم ν اولاد ته وويل : اى د آدم اولاده دا ستاسې طريقه ده تاسې به له خپلو مړيو سره ددېنه وروسته همداسې كوئ .

حضرت آم ν يې چېرته دفن کړو پدې کې اختلاف دی مشهوره دا ده چې د هغه غره په خوا کې په هند کې دفن شو د کوم غره په سر باندې چې له جنت نه را ښکته کړل شوی وو او دا هم ويل شوي دي چې په مکه مکرمه کې په جبل ابي قبيس کې دفن کړل شوی دی او د يو ضعيف قول له مخې چې نوح ν د طوفان په وخت کې حضرت آدم ν او حضرت حواء ο دواړه په تابوتونو کې له ځان سره يوړل او په بيت المقدس کې يې دفن کړل او دا روايت ابن جرير ρ هم نقل کړی دی .

حضرت آدم ν چې کله وفات کېدو عمر يې د حضرت ابن عباس او حضرت ابي هريره κ د روايت له مخې زر کاله وو او دده له وفات نه يو کال وروسته بيا حضرت حواء ο هم وفات شوه .

د حضرت ابي هريره η نه روايت دی هغه فرمايي :

کله چې الله χ حضرت آدم ν پيدا کړو ورته يې وويل : ورشه هغه د ملائکو ډلې ته ووايه **السلام عليکم** ... دی راغلو ملائکو ته يې وويل : **السلام عليکم** هغوی ورته وويل : **عليک السلام و رحمة الله** بيا خپل رب ته اللهχ ورته وويل : دا ستا او ستا د اولادې سلام او تحية ده بيا الله χ خپل (بلا کيف) لاسونه ونيول او حضرت آدم ν ته يې وويل : يو پکې خوښ کړه حضرت آدم ν ورته وويل : زه ښی لاس خوښوم او زما د رب دواړه لاسونه ښي دي کله چې ښی لاس خلاص کړل شو په هغه کې د حضرت آدم ν او د هغه د ټولې اولادې تصوير ښکاره کېدو او د هر سړي سره د هغه اجل هم ليکلی وو او دا ليکلي وو

چې دی به څومره وخت په دنیا کې ژوند کوي د آدمν لپاره زر کاله عمر لیکل شوی وو په هغه اولاده کې ځینې داسې خلک وو چې هغه رڼا ښکاره کېدل حضرت آدم ν پوښتنه وکوله : دا رڼا واله خلک څوک دي؟ الله χ ورته وویل : دا خلک پیغمبران دي زه به یې ور لېږم چې خلق سمې لارې ته برابر کړي پدې کې یې ولیدل چې یو کس ډېره زیاته رڼا لري خو هغه ته یوازې څلوېښت کاله عمر لیکل شوی دی حضرت آدم ν وویل : دا کس ډېره زیاته رڼا لري لکن عمر یې یوازې څلوېښت کاله دی اللّٰهχ ورته وښودل چې دا ستا په اولاد کې حضرت داود ν دی او ما همدا څلوېښت کاله عمر ورته لیکلی دی حضرت آدم ν وویل : ای الله χ زما له عمر نه ٦٠ کاله دې کس ته ور کم کړه .

کله چې زمکې ته را ښکته کړل شو نو بیا به یې خپل عمر حسابولو کله چې ملكُ الموت ν ورته راغلو ده ورته وویل : ملكُ الموت ν تا بیړه وکوله زما په عمر کې اوس هم لا شپېته کاله پاتې دي.

ملكُ الموت ν ورته وویل : هېڅ شی نه دي پاتې دا خو تا الله χ ته ویلي وو چې ستا شپېته کاله عمر حضرت داود ν ته ولیکي .

ده مبارک (چې دا خبره یې هېره وه) وویل : نه ما ندي ویلي نو پدې ځای کې رسول اللّٰه γ فرمایل : د حضرت آدم ν نه خبره هېره شوه نو د هغه په اولاده کې هم له خلکو نه خبرې هېرېږي حضرت آدم ν له خپلې ورکړې نه منکر شو نو اولاده یې هم

انکار کوي نو ددې امله الله χ د ليکلو او
ګواهانو جوړولو حکم وکولو .

# د حضرت نوح v وفات

حضرت نوح v له طوفان نه وروسته چې له کښتۍ څخه را ښکته شو نو پنځوس کاله ژوند يې وکا يوه ورځ فرښته ورته راغله ورته يې وويل : نوح ستاسې نبوت پای ته ورسېدو او ستا ورځې پوره کېدونکې دي خپل علمي خزانه او د علم اثار او علمي ميراث د خپل زوی سام ته وسپاره ترڅو هغه لتا څخه وروسته خلکو ته د الله χ د لارې خبرې کوي او پدې وخت کې حام او يافث هم د حضرت نوح v په اولاد کې وو لکن هغوی د علم خاوندان او اهل نه وو بيا نوح v خپل اولاد ته د هود v د راتلو زېری ورکړو چې وروسته را روان دی او تاسې به د هغه متابعت کوئ او خپل اولاد ته يې نصحيت وکولو چې زه تاسې ته وصيت پرېږدم هغه به تاسې په کال کې يو ځل را خلاصوئ او هغه به ګورئ او دا ورځ به په کال کې ستاسې د خوشحالي ورځ او دا به ستاسې عيد وي بيا د نوح v په اولاد کې به دا علمي ميراث يو بل ته پاتې کېدو تردې چې حضرت هود v پيدا شو .

کله چې يو وخت حضرت نوح v بيمار شو خپل زوی شيث v يې را وغوښت ورته يې وويل : بچيه زه درته وصيت کوم .

حضرت نوح v ورته وويل : بچيه که چېرته دا اوه زمکې او اسمانونه د تلې په يوه پله کې کېښودل شي او يوازې **لا اله الا الله** په بله پله کې کېښودل شي نو د کلمې پله به وربانـدې درنده شي بچيه که چېرته دا زمکې او اسمانونه يوه حلقه شي نو دا **لا اله الا الله** کلمه به دا حلقه ماته کړلی شي دا

**لا اله الا الله** هغه څه دي چې ټول انبياء خپل قوم ته د تبليغ او دعوت له همدې شروع کوي او په همدې باندې يې اختتام کوي .

حضرت نوح v ته ملكُ الموت v راغلو پداسې حالت کې چې دى په لمر کې ولاړ وو سلام يې وربانديږ واچولو حضرت نوح v د سلام ځواب ورکړو ورڅخه يې وپوښتل د څه لپاره راغلى يې اى ملكُ الموت v؟

هغې ورته وويل : ستا د روح د اخيستلو لپاره راغلى يم حضرت نوح v ورته وويل : دومره وخت راکوې چې ددې لمر نه سيوري ته لاړ شم؟

ملكُ الموت v ورته وويل : هو تاسې سيوري ته لاړ شئ کله چې سيوري ته لاړو حضرت نوح v ورته وويل : د دنيا د ا ټول عمر داسې را باندې تېر شو لکه دا زه چې د لمر نه سيوري ته شوم اوس تاته چې د څه په اړه امر شوى دى هغه وکوئ .

ملكُ الموت v ترينه روح مبارک واخيستو او نوح v وفات شو .

## دحضرت ابراهيم v وفات

کله چې د ابراهيم v د وفات وخت شو پدې وخت کې د حضرت ابراهيم v زړه نه غوښتل چې مړ شي (مرګ ډېر سخت دى او دا ورته ډېر تکليف ښکاره کېدو) او ده مبارکv ﷲ χ ته سوال کړى وو چې تر هغه وخته به دى نه وفات کوي ترڅو ده ورڅخه مرګ غوښتى نه وي ... ده مبارک v خلکو ته ډوډۍ ورکوله چې ويې ليدل لرې يو زوړ سړى ولاړ وو او

سخته گرمي وه حضرت ابراهيم ν خپل خر ور ولېږلو چې دی له هغې خوا بېرته وربانديې سپور راشي کله چې دا زوړ سړی راغلو هغه ډېر زيات کمزوری وو کله به يې چې غوښتل خپله نوړئ خولې ته کړي د خولې په ځای به يې غوږ ته يوړه او کله به يې په پوزه کې تخته کوله او کله به يې په سترګه کې ورکوله او کله به يې چې په خوله وخوړه نو له معدې به يې بېرته ووتله..

حضرت ابراهيم ν چې په حيرانتيا سره دې سپين ږيري ته کتل نو يې ورته وويل : اې سپين ږيريه دا ته څه کوې دا ولې داسې کوې؟ ...

هغه کس ورته وويل : ابراهيمه .. دا زه نه کوم دا زما عمر دی چې انسان دې عمر ته را ورسيږي هرڅوک همداسې کيږي...

ابراهيم ν چې پدې وخت کې د ٢٠٠ کلونو وو له هغه سپين ږيري نه يې پوښتنه وکوله : ته د څو کلونو يې؟

هغه ورته وويل : زه د ٢٠٢ کلونو يم ....

حضرت ابراهيم ν وويل : يا الله χدوه کاله وروسته به زه هم همداسې کېږم؟ ای الله χ زما روح واخله ... هغه سپين ږيری چې په اصل کې سپين ږيری انسان نه بلکه فرښته وه ور پاڅېدو او دده روح يې واخيستو ....

# د حضرت داود ν وفات

د حضرت داود ν عادت وو چې د شپې به يې يوې وينځې ته حکم وکولو هغې به ټولې دروازې بندې

کړې او کليانې به يې ده ته حواله کړې ده V به هغه کليانې له ځان سره کېښودې او بيا به يې په اطمنان سره په خپل عبادت باندې شروع وکوله

کله چې دده مبارک V د وفات وخت شو نو د دروازو د بندولو نه وروسته يې يو کس په کور کې د ننه وليدو پوښتنه يې ورڅخه وکوله : ته څوک يې او چا د ننه راوستلې؟ هغه ورته وويل : زه هغه کس يم چې بادشاهانو ته بغير د اجازې ورځم حضرت داود V ورته وويل : ولې ته ملکُ الموت V يې؟ ملکُ الموت V ورته وويل : هو ...

حضرت داود V ورته وويل : له راتلو نه مخکې خو به د کوم رسول را لېږلى وو چې ما مرگ ته تيارى کړى واى ..

ملکُ الموت V ورته وويل : ما درته مخکې ډېر رسولان را ولېږل چې تاته يې دا خبر درکاوه چې زه را روان يم ..

حضرت داود V ورته وويل : څوک وو ستا رسول؟

ملکُ الموت V ورته وويل : ولې ستا پلار ، نېکه ، ورونه ، ملگري او همسايه گان چې پدې دنيا کې وو هغه اوس چېرته دي؟

حضرت داود V ورته وويل : هغه مړه شوي دي ..

ملکُ الموت V ورته وويل : نو ددې ټولو د مرگ نه ته خبر نه شوې چې ته به هم يو ځل مرې؟ بيا يې دده مبارک V ساه واخيسته .

# د حضرت يـحيـى او د هغـه د والـد زكـريـا θ وفـات

پـه يـو حديـث كـې روايـت دى اسحاق بـن بـشر پـه خپل كـتاب الـمبـتـدا كـې روايـت كـړى دى هغـه فـرمـايـي مـوږ تـه يـعقـوب الـكفـوي خبـر راكـړو د عمـرو بـن مـيمـون څخه هغـه لـه خپـل پـلار نـه روايـت كـوي هغـه لـه حضرت عبـد الله ابـن عبـاس η نـه روايـت كـوي هغـه فـرمـايـي كـلـه چې رسـول الله γ د مـعـراج پـه شپـه اسمـان تـه وختـلـو هلـتـه يـې حضرت زكـريـا ν ولـيـدو سلام يـې وربـانـدې واچـولـو ورڅـخه يـې و پـوښـتـل اى ابـا يـحيـى تـه بـنـي اسرائـيـلـو ولـې او څنګه ووژلـې؟

هغـه ورتـه وويـل : مـحمـده! زه تـاتـه وايـم چې يـحيـى ν پـه خپـل وخـت كـې تـر ټـولـو غـوره انـسـان وو ، ډيـر ښـائـسـتـه وو ، ډيـر رڼـا مـخ يـې درلـود لـكـه الله χ چې د هغـه پـه اړه ويـلـي دي و سيـداً و حصـوراً هغـه همـداسې وو او د هغـه ښځو تـه ضـرورت نـه وو د بـنـي اسرائـيـلـو د بـادشـاه ښځـه يـوه بـد عمـلـه ښځـه وه هغې حضرت يـحيـى ν ځـان تـه ور وغـوښـت لـكـن حضرت يـحيـى ν لـه ورتـلـو څخه انـكـار وكـولـو (د بـادشـاه د ښځې لـه غـوښـتـنې څخه انـكـار كـول ډيـر عجـيـب وو) نـو هغې ا راده وكـولـه چې يـحيـى ν بـه قـتـلـوي او د هغې يـوه ورځ وه چې پـه كـال كـې بـه پـه هغـه ورځ بـانـدې را ټـولـېدل او دا بـه يـې د اختـر ورځ ګـڼـلـه او پـه بـادشـاه كـې عـادت وو چې ده بـه يـوځـل څـه وعده وكـولـه نـه بـه يـې ورڅخه وعده خلافـي كـولـه او نـه بـه يې لـه چـا سـره دروا غ كـول كـلـه چې بـادشـاه د عيـد ورځې تـه را وتـل غـوښـتـل او خلـكـو تـه راوتـلـو نـو دده ښځـه هم پـه ده پـسې روانـه شـوه دى ډيـر ورتـه خوشحـال شـو ځـكـه دده ښځې بـه مـخكـې داسې

نـه كـول نـو پـدې ورځ يـې ورتـه وويـل : نـن لـمـا څخه سوال وكـوه څـه شی چې تـه غـواړې دربـه كـړل شي .

دې ورتـه وويـل : زه د يـحيـى بـن زكـريـاθ ويـنـه غـواړم (غـواړم چې هغـه ووژل شي) بـادشاه ورتـه وويـل : بـل شی وغـواړه دې ورتـه وويـل : نـه بـس همدا بـس دی بـادشاه خـپـل جلاد پـسې را ولـېږلـو هغـه پـه محراب كې مـونـځ كـولـو او مـا ورسره پـه خـوا كې مـونـځ كـولـو نـو هغـه كـسان راغـلـل حضرت يـحيـى ν يـې همدلـتـه پـه يـوه طشت (لـگـن) كې ذبـح كـړو او د هغـه سر او ويـنـه يـې د بـادشاه ښځې تـه وروړه ... پـدې وخت كې رسول الله γ ورتـه وويـل : ستـا صبـر پـدې وخت كې څومـره وو؟ حضرت زكـريـا ν ورتـه وويـل : مـا ورتـه خـپـل مـونـځ قـطع نـه كـړو خـپـل مـونـځ مـې روان وساتـلـو .

د حضرت يـحيـى ν سر دوی يـوړو د هغـوی پـه مخ كې يـې كېښود نـو چې كـلـه مـاښام شـو د شپـې بـادشاه او د هغـه ټـول اهل پـه زمـكـه ننـوتـل او خسف شـول كـلـه چې سحر شو نـو بـنـي اسرائـيـلـو وويـل : د زكـريـا رب د زكـريـا لـه املـه پـه غصه شوی دی راځئ چې مـوږ هم د خـپـل بـادشاه لـپـاره غصه شو او زكـريـا قـتـل كـړو نـو زمـا پـه تـالاش او لـټـون كې را ووتـل مـا تـه دا خبـر را ورسېدو مـا لـه دوی نـه تـېښتـه شروع كـړه دوی ډلـه وو او ابـلـيـس د دوی پـه مخ كې وو زه يـې ور ښودلـم آخر زه ډېـر وډار شوم او د دتـېښتـې هېڅ لاره را تـه نـه وه معلـومـه نـو يـوه ونـه را ښكـاره شوه مـاتـه يـې وويـل : مـاتـه راشه .... مـا تـه راشه د هغې گـېډه زمـا لـپـاره خلاصه شوه زه پـكې ور ننـوتـلـم ونـه بـېرتـه سره ورغلـه او زمـا د څادر يـوه پـيـځكـه لـه ونې څخه بـهر پـاتې شوه ابـلـيـس راغی هغـه د څادر پـيـځكـه يـې ونـيـولـه او دوی تـه يـې وويـل : دا دی پـه دې ونـه كې دی پـه خـپـل سحر سره پـه ونـه كې ننـوتـلـو او دا يـې د

ځادر برخه او پيڅکه ده نو دوی وويل : ونې ته اور ور ا چوو ابليس ورته وويل : نه اور مه ور اچوئ په اره باندې يې اره کړئ نو هغوی ونه اره کوله په مينځ کې يې زه هم ورسره اره کړم .

## د رسول الله γ ځانګړنې او وفات

رښتيا چې الله χ رسول الله γ زمکې ته يو هدايت ، رحمت ، نور او رڼايي را لېږلې وه الله χ ورته ډېره لوړه مرتبه ورکړې وه خو بيا به هم دده γ د نېکو اخلاقو له جُملې څخه وو چې ده به د خپلو صحابه ووφ سره د يو عام انسان په ډول ژوند کاوه د دوی په شان خوراک به يې کولو او د دوی په شان تکليفونه به يې برداشت کول ، له دوی سره په لوږه او تنده کې شريک وو ، په جهاد کې ورسره شريک وو ، په هجرت کې ورسره شريک وو ، د خندق په کينيستلو (ژورولو) کې يې پخپله لکه د نورو صحابه وو φ داسې کار کاوه هغه څه به يې خوړل چې کوم به دوی خوړل ، هغه څه به يې څښل چې دوی به څښل په هغه څه به کېناستلو چې نور عام صحابه φ به ورباندې کېناستل ، کله به چې د کفارو له لوري ورباندې ظلمونه زيات شول دده به صبر زيات شو ، په ټول عمر کې يې له چا څخه د خپل ځان لپاره انتقام نه دی اخيستی او نه د ځان لپاره غصه شوی دی او زياته غصه به دده γ هغه وخت وه چې کله به د الله χ د دين موضوع وه او چا به ورباندې څه ډول تېری وکولو ، په ټولو خلکو کې زيات حياء ناک، زيات د عزت ورکولو خاوند وو ، مسکينانو ته به ورتللو د هغوی سره به کيناستلو د هغوی د مشکلاتو په اړه به يې له هغوی سره مرسته کوله ددې امله وو چې

صحابه وو φ هم ورسره بې ساري مينه كوله يو صحابي به چې كله كور ته راغلو بېرته به زر جومات ته روان شو ځكه رسول الله γ به ورته ياد شو او د هغه جدايي به ورته مشكله وه چې برداشت يې كړي حتې چې ځينې صحابه وو φ ددې امله هم وژړل چې په آخرت كې به رسول الله γ له موږ نه بېل وي ځكه هغه γ ته الله χ لوړه منزله او مرتبه وركړېده او څرنګه چې هغه منزلې ته عام كسان نشي رسېدلى نو ددې امله به رسول الله γ له موږ نه په لوړو مرتبو كې وي لكن رسول اللهγ هغوى ته زيرى وركړو چې انسان به په قيامت كې د هغه كسانو سره په يو ځاى را پاڅيږي چې ده ته ګران وي او دده خوښ وي صحابه وو φ ورسره ډېره په مينه خپل ژوند تر سره كړو او په ډېرو ځايونو كې يې د رسول الله γ په مخكې قربانۍ وركړې خپل ځانونه او مالونه يې د رسول الله γ په وړاندې له قرباني كولو څخه بالكل نه سپمول لكن څرنګه چې رسول اللهγ يو انسان وو كه څوك پرې خفه كيږي او كه پرې خوشحاليږي انسان به خامخا له دې دنيا نه ځي لكه الله χ چې فرمايي : إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ.[1]

ترجمه : بېشكه چې ته هم مړ كيدونكى ئى او بېشكه دوى هم مړه كيدونكى دى (او هيڅوك بى له الله χ پاتى كيدونكى نه دى).

هغه وخت راغلو چې رسو ل الله γ به له دوى څخه رخصت كيږي جنتونو ته به ځي ، خپل رفيق اعلى ته به ځي ، داسې راحت ته به ورځي چې په هغه

[1] سورة الزمر آية ٣٠

کې سترېا نه وي ، نا ارامي پکې نه وي ، تکليف او زحمت پکې نه وي .

سره ددې چې صحابه کرام φ ټول علماء وو او رښتينې توحيد او پاکه ، کلکه او پخه عقيده يې درلوده پدې پوهېدل چې رسول الله γ بشر او انسان دی هر بشر له دنيا تلونکی دی نو ځکه رسول الله γ به هم يو وخت وفات کيږي لکن بيا هم دوی دا تصور نشوای کولی چې رسول الله γ به وفات کيږي ځکه دوی به فکر کاوه که رسول الله γ وفات شي نو دوی به مونځ په چا پسې کوي؟ چا ته به غوږ نيسي چې هغه ورته نصيحت وکوي؟ دوی ته به څوک دين ور ښيي؟ د دوی تربيه به څوک کوي؟ دوی ته به څوک داسې دمينې خندا کوي لکه رسول الله γ به چې ورته کوله ؟ له دوی سره به څوک نرمي کوي؟ څوک به دوی تر لاس نيسي چې په نرمي سره يې سمې لارې ته برابر کړي؟ رسول الله γ په دنيا کې د مينې يوه نمونه وه نه يوازې صحابه کرامو φ بلکه د مدينې منورې خورماوو ، کورونو ، لارو، دروازو هرشي ورسره مينه درلوده تاسې ته هغه واقعه ياده ده چې رسول الله γ به د خورما يو وچ ډډ ته دريدلو او د خطبې په وخت کې به که څه سترېا ورته محسوس کېدله نو هغې ته به يې تکيه کوله د يوې صحابيې ښځې غلام نجار وو هغې په خپل غلام باندې ورته منبر جوړ کړو چې پدې باندې به رسول الله γ د خطبې په وخت کې کيني بيا به يې هم اواز د ومره خلکو ته رسيږي لکه هغه چې ولاړ وي نو چې کله د خورما د وچې تنې څخه لرې ودريد نو د خورما له تنې نه داسې د ژړا اواز را پورته کېدو لکه ماشوم چې ژاړي او رسول الله γ هغه قراره کړه او هغه ته يې اختيار ورکړو چې که د دا خوښه وي چې همدلته تازه شې

او خورما وکوې دا خلک ستا خورما وخوري او که د دا خوښه وي چې اوس همداسې پاتې شې بیا په جنت کې را شنه شې هلته به د جنتیان مېوه خوري؟ هغې د خورما وچې تنې له رسول الله γ سره خبرې وکولې او دا یې خوښ کړل چې جنت ته لاړه شي .... نو ځکه په مدینه منوره کې صرف صحابه کرامو φ نه بلکه هر شي له رسول الله γ سره مینه کوله چې یوه وچه خورما په رسول الله γ پسې ددې امله ژاړي چې اوس به د خطبې په دوران کې رسول الله γ څو قدمه له دې نه لرې ته درېږي نو که هغه له دې نه داسې لاړ شي چې بیا بالکل ورته نه را ګرځي نو دا خورما به بیا څومره خفه وي .. همدا حال د صحابه وو φ او نورو موجوداتو وو ....

څو الله χ به وخت په وخت په مختلفو آیتونو کې صحابه وو φ ته ور په زړه کول چې یو وخت رسول الله γ وفات کېدونکی دی لکه الله χ چې فرمایي

إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَّيِّتُونَ . [1]

ترجمه: بېشکه چې ته هم مړ کیدونکی ئی او بېشکه دوی هم مړه کیدونکي دي (او هېڅوک بې له الله χ پاتې کېدونکي نه دي).

په بل ځای کې الله χ فرمایي: وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ أَفَإِيْنْ مِتَّ فَهُمْ الْخَالِدُونَ * كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ. [2].

[1] سورة الزمر آية 30
[2] سورة الأنبياء آية 34، 35

ترجمه : او نه دى ګرځولى موږ هېڅ يوه انسان ته پخوا له تانه (اى محمده) تل ژوندي پاتې كېدل (په دنيا كې) آيا پس كه ته مړ شې پس دوى به تل پاتې كېدونكي وي (په دنيا كې بلكه داسې نه ده) هر يو نفس څكونكى د مرګ دى (يعنى مري) ،

په بل ځاى كې الله χ فرمايي: وَمَا مُحَمَّدٌ إِلاَّ رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِيْن مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ .[1]

ترجمه: او نه دى محمد مګر (دى) يو رسول (د الله) ، په تحقيق تير شوي دي له ده نه پخوا (ډېر) رسولان ، آيا نو كه مړ شي (محمدγ) يا شهيد كړل شي (محمدγ) نو بېرته به وګرځئ پر پوندو خپلو (كفر ته) .

په بل ځاى كې الله χ فرمايي : إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ * وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجاً * فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّاباً.[2]

ترجمه: كله چې راشى نصرت مرسته (مدد) د الله χ او فتح (د مكى) او وينې به ته خلق چې ننوځي په دين د الله χ كې فوج فوج ډلې ډلې پس تسبيح پاكي وايه سره د حمد ثناء د رب خپل او مغفرت بښنه وغواړه له ده څخه (لپاره د ګناهونو د امت خپل يا لپاره د ماتېدو د نفس او قصور د عمل) بېشكه چې دغه (الله) تل دى ښه توبه قبلوونكى د بښنه غوښتونكو ګنهګارانو .

[1] سورة آل عمران آية 144
[2] سورة النصر

د حضرت ابن عباس η نه روایت دی چې کله د النصر سورة د تشریق د ورځو په مینځ کې نازل شو رسول الله γ پوه شو چې دا وداع (خدای په اماني ده) .[1]

په بل ځای کې الله χ فرمايي :الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمْ الإِسْلاَمَ دِيناً .[2]

ترجمه:نن ورځ مکمل (پوره کړ ما تاسې ته دین ستاسې (اصولاً او فروعاً) او تمام (پوره مې کړ پر تاسې (ای مؤمنانو!) نعمت (د دین په اکمال) او غوره کړ ما تاسې ته اسلام له جهت د دین (ډیر پاکيزه په ټولو اديانو کې) .

ابن عربي فرمايي : په دنيا کې چې هرشی پوره شي بېرته د هغه نقصان شروع کيږي ترڅو رښتينی کمال يوازې د الله χ د ذات اقدس کمال پاتې شي .[3]

رسول الله γ هم په ډيرو خبرو کې خپل صحابه کرام φ پدې پوه کړي وو چې دده γ د اجل وخت را نېږدې شوی دی پدې اړه د حضرت معاذ بن جبلη نه روايت دی هغه فرمايي کله چې رسول الله γ دی د يمن په لور رخصت کولو رسول الله γ له ده سره ووتلو پداسې حالت کې چې حضرت معاذ بن جبل η په خپله سپرلۍ سپور وو او رسول الله γ په پښو ورسره روان وو په خپل وصيت کې يې ورته وويل : معاذه کېدای شي د سږ کال نه وروسته بيا ته

---

1 سنن بيهقي
2 **سورة المائدة آية 3**
3 **العواصم من القواصم**

لما سره ملاقي نشي او كه داسي يې ورته وويل : كېداى شي ته بيا زما پدې جومات او دې قبر باندې تېر شې حضرت معاذ η د رسول الله γ د فراق د خبرې په آورېدو سره په ژړا شو بيا رسول الله γ مدينې منورې ته وكتل او ويې فرمايل : زما په وړاندې غوره خلک متقيان دي چې هرڅنګه وي او هر چېرته وي .[1]

حضرت عائشه l فرمايي : حضرت فاطمه l راغله داسې تله لكه رسول الله γ به چې تلو رسول الله γ ورته وويل : زما بچۍ د سترې مه شي بيا يې په خپل څنګ كې كينوله بيا يې څه پټه خبره ورته وكوله هغه مباركه په ژړا شوه ما ورڅخه پوښتنه وكوله ولې ژاړې؟ بيا يې څه بله خبره ورته وكوله دا مباركه په خندا شوه .. ما وويل : ما تراوسه پورې خوشحالي او خفګان دومره نږدې نه وو سره ليدلي (دومره په لږ وخت كې خندا او ژړا دواړه) ما ورڅخه پوښتنه وكوله چې رسول الله γ تاته څه وويل؟ دې مباركې l وفرمايل : زه د رسول الله γ راز نه خپرول غواړم چې كله رسول الله γ وفات شو نو ماته يې وويل : رسول الله γ ماته وويل چې جبريل ν به په يو كال كې يو ځل لما سره د قرآن كريم ختم كاوه او پدې كال كې يې راسره دوه ځلې تېر كړو ماته ددې وجه زما د اجل نږدې كېدل ښكاره كيږي او ته به په ما پسې اول پيوسته كېدونكې وې ... نو زه په ژړا شوم بيا يې راته وويل : ته پدې نه يې خوشحاله چې د جنت د ښځو سرداره به وې او يا د مؤمنانو د ښځو سرداره به وې .. نو ما وخندل .[2]

---

[1] رواه احمد ٢١٥٤٧
[2] صحيح البخاري و مسلم

د حضرت جابر η نه روايت دى چې رسول الله γ (د جمرو په ويشتلو كې) دوى ته د ويشتلو د طريقې په اړه خبرې كولې بيا يې ورته وويل : كېداى شي ددې كال نه وروسته بيا زه تاسې ونه وينم .[1]

د هجرت په لسم كال په حجة الوداع كې رسول الله γ بيا بيا ويل زما څخه دحج مسائل او مناسک زده كړئ زما څخه واورئ كېداى شي ددې كال نه وروسته بيا زه لتاسې سره مخامخ نه شم .

د امام مسلم د روايت له مخې رسول الله γ فرمايل زما د په هغه ذات قسم وي چې د محمد نفس يې په اختيار كې دى په تاسې كې به په چا باندې داسې وخت راشي چې هغه به بيا ما ونه ويني او دا به خوښوي چې زما ديدن ورته د مال او اهل په بدل هم شوى وى .

د رسول الله γ تره حضرت عباس η بن عبد المطلب ورته راغلو ويل يې يا رسول الله γ خوب مې ليدو چې زمكه د اسمان خواته ور جذب كيږي ... رسول الله γ ورته ويل دا ستا د وراره مرگ دى (خپل ځان يې ورته ښودلو)

## د رسول الله γ بيماري

په خيبر كې د سلام بن مشكم ښځې زينب بنت الحارث رسول الله γ ته يو كباب كړى گډ وړاندې كړو او مخكې لدې نه يې پوښتنه وكوله چې رسول الله γ د كوم ځاى غوښه ښه خوري؟ دوى ورته وويل : د لاس نو په ټول گډ باندې يې زهر ورته واچول

[1] صحيح الترمذي

او په لاس باندې يې لږ په زياته پيمانه واچول خو چې رسول الله γ څنګه له دې لاس نه مړی وکوله هغه ورته په خبرو شو او ورته يې وويل : په ما کې زهر ا چول شوي دي رسول الله γ هغه په خوله کې نوړی تف کړه (له خولې نه وغورځوله) او ټولو په خوراک کې شريکو صحابه وو φ ته يې وويل : خوراک بند کړئ مه خورئ پدې کې زهر دي .

هغه کسانو چې خوراک يې ترېنه کړی وو د هغوی علاج وشو ځينې يې په شهادت ورسېدل او ځينې يې بيا محفوظ شول رسول الله γ د همدې زهرو نه متاثر شوی وو او اکثر به ورته تکليف پيدا کېدو او کله يې چې په آخري ځل هم تبه سخته شوه نو په بيماري کې يې ويل : زه له هغه نوړی نه چې په خيبر کې مې کړې وه د تکليف احساس کوم او داسې ده لکه زما ابهر رګ (چې شاه رګ دی يا د زړه رګ او يا بل په بدن کې مهم رګ دی) پرې شوی وي.[1]

نو ددې امله رسول الله γ ته الله χ ښکلی شهادت د هغه چا په لاس ورکړو چې هر وخت به يې د انبياوو قتل کولو (يهود) د رسول الله γ نه وړاندې هم ډېر انبياء ν د دوی په لاس باندې قتل شوي وو .

حضرت ابي مويهبة η د رسول الله γ ازاد کړل شوی غلام وو هغه فرمايي : د هجرت د يولسم کال د صفر په آخر کې په نيمه شپه کې رسو ل الله γ زه ور وغوښتم او راته يې وويل : ماته امر شوی دی چې زه په بقيع کې د دفن شويو خلکو لپاره بښنه وغواړم زما سره بقيع ته لاړ شه زه ورسره روان

[1] ابو داود

شوم کله چې هلته ورسېدو ویې ویل : په تاسې باندې د سلام وي دا تاسې چې په کوم حالت کې یاست دا د تاسې ته اسان شي له هغه حالت نه چې په کوم کې خلک دي ، که تاسې پوهېدی چې الله χ تاسې ته له کوم شي نه نجات درکړی دی فتنې داسې راغلې دي لکه د تورې تیارې شپې ټوټې آخره یې په اوله پسې وي او هره روستۍ تر مخکنۍ څخه ډېره بده وي بیا یې ما ته مخ را وګرځولو او راته یې وویل : ای ابا مویهبة ! ما ته د دنیا د خزانو کلیانې او په دنیا کې همېشه پاتې کېدل او بیا جنت ته تلل او یا د خپل رب سره د ملاقات په مینځ کې اختیار راکړل شو ما ورته وویل : زما مور او پلار لتا نه زار شه خو دا به دې غوره کړی وو چې د دنیا د خزانو کلیانې او دلته همېشه پاتې کېدل او بیا جنت ته تلل به د خوښ کړي وو؟ رسول الله γ راته وویل : نـــــــــه والله ابا مویهبة ما د رب سره ملاقات او جنت خوښ کړو بیا یې د بقیع د خلکو لپاره بښنه وغوښته او له هغه ځای نه را وګرځېدو او له هغه وخت نه وروسته یې بیماري مخ په زیاتېدو شوه .[1]

د هجرت په ۱۱ کال د صفر په ۲۹ یې په یوه جنازه کې شرکت وکولو په سر یې درد شو کور ته چې لاړو د حضرت عائشې l هم په سر درد وو کله چې رسول الله γ کور ته ننوت حضرت عائشې l وویل وای سر مې ... رسول الله γ وویل وای زما سر ... په سر یې درد سخت او ورسره تبه یې شوه چې داسې حرارت وو پکې چې کوم شی به یې پرې اچولې وو د هغې د پاسه حرارت محسوس کېدو .

[1] رواه احمد و الدارمي

د ورځو په تېرېدو سره يې بيماري په زياتېدو وه خو رسول الله γ كوښښ كاوه چې ترڅو پورې كېداى شي مونځ د صحابه وو φ سره په جومات كې وكوي او جومات ته به راوتلو او بيا به بېرته كورته تلو پدې وخت كې ټولو بيبيانو ورته اجازه وكوله چې دى γ دې د بيمارى شپې د حضرت عائشېl په حجره كې تېرې كړي نو د ژوند آخري هفته يې ټوله دهغې مباركې l په حجره كې تېره كړه

د ربيع الاول په اومه نېټه د چهارشنبې په ورځ يې بيماري سخته وه بدن مبارک يې زيات ګرم وو او سر درد يې هم زيات وو ويل يې په ما باندې اوبه واچوئ چې زه مانځه ته لاړ شم دوى كېنولو او اوبه يې پرې واچولې تردې چې رسول الله γ وويل بس بس .. بيا را پاڅېدو په توره همسا يې تكيه كوله د حضرت علي او حضرت عباس K په مينځ كې راروان وو او په دوى يې تكيه كړې وه او پښې يې پسې را كښل كېدلې را يې وستلو او په منبر يې كښېنولو خلک ورته شاوخوا ته را ټول شول رسول الله γ ورته خبرې شروع كړې ورته يې وويل :

السلام عليكم ورحمة الله و بركاته :

په يهودو او نصارا وو دې د الله χ لعنت وي دوى د خپلو پيغمبرانو قبرونه مسجدونه كړل اى الله χ ته زما د قبر نه بت مه جوړوه چې عبادت يې وشي ، اى خلكو زه د خپل رب سره ملاقات كونكى يم او زه به هغه څه ورته ووايم چې تاسې لما سره منلي دي ، اى خلكو كه ما چاته شكنځل كړي يا مې رټلي وي يا مې يې مال خوړلى وي نو مخكې ددېنه چې داسې وخت راشي چې هلته نه درهم وي او نه دينار لما څخه دې اوس بدله واخلي اى خلكو كه ما څوک په شا باندې په دُره وهلي وي

اوس دا زما شا حاضره ده خپل بدل د واخلي ..
حضرت انس η فرمايي پدې وخت کې ما ټولو خلکو ته کتل چې سرونه يې په زنګنونو باندې ايښي وو او ژړل يې او فرمايل يې : زموږ مور پلار لتانه قربان شه اى رسول الله γ....

بيا را ښکته شو د ماسپښين مونځ يې وکولو بيا منبر ته وختلو و يې فرمايل : اى خلکو زه تاسې ته د انصارو په هکله نصيحت کوم دوى زما د راز او نياز خلک دي په دوى چې کوم شى لازم وو دوى پوره کړي دي او هغه څه پاتې دي چې ددوى لپاره دي دوى که له چا سره نيکي کوي نو نيکي ترې قبلوئ او که څه بد ترې کيږي هغه ورته معاف کوئ اى خلکو يو انسان ته الله χ اختيار ورکړو چې ددنيا تازګي او عيش غواړي او که هغه څه غواړي چې د الله χ سره دي نو دې بنده هغه څه غوره کړل چې له الله χ سره دي .

د حضرت ابو بکر صديق η د ژړا اواز را پورته شو ويل يې مور او پلار مو لتا قربان شه اى رسول الله γ ابو سعيد الخدري η فرمايي په هغه ځاى کې موږ د حضرت ابو بکر صديق η ژړا ته حيران پاتې شوو (چې پدې خبره ده ولې وژړل) بيا وروسته موږ پوه شوو چې دا بنده خو رسول الله γ پخپله وو .

ددې ورځې په سبا د پنجشنبې په ورځ يې بيماري نوره هم سخته وه د ماښام مونځ يې وکولو والمرسلات عرفاً سورت يې پکې وويلو د ماسخوتن مانځه ته يې د راوتلو اراده وکوله پنځه ځله يې ځان وتلو ته برابر کړو لکن بيا به بې هوښه شو سترګې به يې راپورته کړې پوښتنه به يې کوله : خلکو مونځ کړى دى؟ بيا به دوى ورته

وويل نه ! ستا انتظار كوي چې په پنځم ځل هم په وتلو قادر نه شو نو يې وويل ابو بكر صديق η ته وواياست چې په خلكو باندې مونځ وكوي حضرت عائشې ι ورته و فرمايل : هغه كه ستا په ځاى ودريږي كېداى شي خپل ځان به په واك كې ونشي ساتلى خو رسول الله γ بيا امر وكولو چې ابو بكر دې په خلكو باندې مونځ وكوي .

د شنبې په ورځ يې بيا زړه د جومات نه بغير صبر ونه كولو د ماسپښين مانځه ته په داسې وخت كې را ووتلو چې خلك په مانځه ولاړ وو كله چې دى γ را ورسېدو حضرت ابو بكر صديق η غوښتل چې له محراب نه را وروسته شي لكن ده γ ورته اشاره وكوله چې مه را وروسته كېږه دا مونځ يې هم په جومات كې وكولو او بېرته كور ته را ستون شو بيماري يې سخته وه ، بدن يې سخت گرم وو ، حضرت عائشه ι فرمايي ما څوك ندي ليدلي چې د رسول الله γ نه يې سخت درد او تكليف وي .

د ربيع الاول په ۱۱مه د يكشنبې په ورځ يې خپل غلامان ازاد كړل اوه ديناره يې درلودل هغه يې خيرات كړل خپله اسلحه يې مسلمانانو ته تحفه كړه ، د شپې چې د چراغ د لگېدلي ساتلو ضرورت شو حضرت عائشه ι تېل د گاونډى نه راواخستل ، او په دې وخت كې يې يوه زغره د يو يهودي سره د دېرشو پيمانو وربشو په بدل كې گانه وه .

د دوشنبې په ورځ يې د سهار په وخت كې جومات ته په داسې وخت كې راوكتل چې مسلمانان په مانځه ولاړ وو مخ يې داسې را ښكاره شوو لكه د قران كريم صفحه ځلېدو او موسكى وو ابو بكر صديق η فكر وكاوه چې مانځه ته راتلل غواړي

غوښتل یې چې را وروسته شي حضرت انس η فرمايي مسلمانان ټول زيات خوشحال شول فکر يې وکاوه

چې د رسول الله γ طبيعت اوس ښه شوی دی لکن ده γ په لاس اشاره وکوله چې خپل مونځ وکوئ او بېرته يې د کړکۍ پرده را پرېښوده او ارام يې وکولو .

د څاښت په وخت کې حضرت فاطمه ι ورته راغله چې

سخت يې ژړل لکن رسول الله γ دا خوشحاله کړه ورته يې وويل چې زما د اهل نه به ته اول په ما پسې راځې او ته به په جنت کې د ښځو مشره او سيده وې .

ددېنه وروسته ئې حضرت حسن او حسين κ را وغوښتل دواړه يې مچي کړل او ويې وفرمايل چې دوی خفه نه کړئ او ددوی سره به ښه رويه کوئ .

درد يې زيات شو په خوا کې يې د اوبو لوښی

اېښی وو رسول الله γ به لاس پکې غوټه کړو بيا به

يې په مخ مبارک را کش کولو ويل به يې **"لا إله إلا الله إن للموت لسكرات"** حضرت عائشې ι ځان خواته تکيه

کړو اسامه بن زيد η چې ده γ ورته د لمسي مينه

ورکوله پدې وخت کې را ننوت رسول الله γ خبرې نشوای کولی لاس به يې اسمان طرف ته پورته کړل

بيا به يې په ده η باندې کېښودل معلومېده چې دعا ورته کوي .

حضرت عبد الرحمن بن ابي بکر η (د حضرت عائشې

ι ورور) را ننوت دحالت پوښتنه يې کوله په لاس

کې يې مسواک وو رسول الله γ هغه ته وکتل حضرت

عائشه ι فرمايي زه پوه شوم چې مسواک غواړي

ما د عبد الرحمن η نه مسواک واخستو بیا مې په خپله خوله کې ښه نرم کړو په غاښونو مې و چیچلو او لوند مې کړو بیا مې رسول الله γ ته په لاس ورکړو هغه په ټوله خوله کې په ښه طریقه مسواک ووهلو او په ټوله خوله کې یې را تاو کړو ترڅو د الله χ حضور ته په پاکه خوله سره ورشي کله چې د مسواک نه فارغ شو پورته چت ته یې وکتل او شونډې مبارکې یې وښورولې ما غوږ ور نیږدې کړو ده γ فرمایل :

"مع الذين أنعمت عليهم من النبيين والصدّيقين، والشهداء والصالحين، اللهم اغفر لي وارحمني، وألحقني بالرفيق الأعلى، اللهم الرفيق الأعلى، اللهم الرفيق الأعلى، اللهم الرفيق الأعلى"

بیا یې خپل لاس مبارک وغزولو او د دنیا نه یې سترګې پټې کړې د دوشنبې ورځ د هجرت یولسم کال د ربیع الاول دولسمه نېټه وه پدې وخت کې د رسول الله γ عمر ٦٣ کاله او څلور ورځې جوړېدو .

د رسول الله γ د رحلت خبر په مدینه منوره کې خپور شو خلک ډلې ډلې راغلل د جومات او د حضرت عائشې l د حجرې خوا ته .

داسې ډېر کسان وو چې ددې غم تحمل یې ونشو کولی حضرت ابن حاجبρ فرمایي داسې خلک هم وو چې دې غم وربانديې تاثیر وکولو بیا دهغه نه وروسته یې خبرې ونشوای کولی دچا دماغو کار پرېښودو بیا یې لکه د لیونیو داسې حرکت کولو حضرت عمر η خبر شو هغه را ووت او ویل یې منافقینو اوازه اچولې ده چې رسول الله γ وفات شوی دی چې څوک دا خبره کوي زه یې وژنم حضرت ا

بـو بـكـر صديـق η چې خبـر شو سيـده را روان وو د خپلـې لـور(حضرت عـائـشې ι كـوټـې تـه او لـه هېچا سره يـې خبـرې نـه كـولـې رسول الله η يـې ولـيـدو چې پـه يـوه جامـه كې نـغښتـی وو جـامـه يـې تـرې پـورتـه كـړه او ښكل يـې كـړو ورتـه يـې وويـل زمـا مـور او پـلار تـانـه قـربـان شه تـه دوه ځـلـه نـه مـړ كېږي دا يـو مـرګ چې پـه تـا بـانـدې وو تـه پـه هـغـه مـرګ مـړ شوې بـېرتـه خـلـكو تـه را ووتـلـو پـدې وخت كې خـلـكو تـه حضرت عـمـر η خبـرې كـولـې ده η ده حضرت عـمـر η نـه وغوښتـل چې چـپ شي ده تـه د خبـرو مـوقـع وركـړي لـكـن حضرت عـمـر η چې پـه جذبـاتـو كـې وو خـپـلـې خبـرې يـې بـس نـه كـړې كـلـه چې دی ودرېـدو نـو خـلـكو دده خـواتـه تـوجه وكـولـه ده خـپـلـې خبـرې شروع كـړې او ويـې فـرمـايـل :

چـا چې د مـحمـد γ عبـادت كـولـو نـو هـغـه γ وفـات شو او كـه څـوك د الله χ عبـادت كـوي هـغـه حی لا يـمـوت دی بـيـا يـې آيـت تـلاوت كـړو :

**"مَا مُحَمَّدٌ إِلاَّ رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِن مَّاتَ أَوْ قُتِلَ انقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ وَمَن يَنقَلِبْ عَلَىَ عَقِبَيْهِ فَلَن يَضُرَّ اللّهَ شَيْئاً وَسَيَجْزِي اللّهُ الشَّاكِرِينَ"**

تـرجمـه : نـدی مـحمـد مـګر صرف رسول دی او دده نـه مـخكې هم رسولان تـېر شوي دي كـه هـغـه چېرتـه مـړ شي يـا ووژل شي نـو تـاسې بـه بـېرتـه پـه شا بـانـدې ګـرځئ ... او هـغـه كـسان چې بـېرتـه وګـرځي الله χ تـه هېڅ ډول ضرر نـشي رسولـی الله χ بـه شكر كـونـكو تـه اجر وركـړي .

اوس خلک د خبـر پـه اصلي حقـيقـت بـانـدې پـوه شول حضرت عـمـر η هم اوس پـوه شو چې حقـيـقـت څه دی پـښو

يې د دريدلو وس نه درلود په زمکه را وغورځېد د خلکو د ژړا اواز پورته شو او ټولو پورتنی آيت تلاوت کولو .

د دوی ټولو ژړا په ځای وه اوس د دنيا نه هغه هستي لاړه چې نه مخکې دنيا ته راغلې وه او نه به وروسته راشي الله χ زموږ له لوري نه پرې لا يتناهي درود او سلام نازل کړي.

## د حضرت ابي بکر صديق η ځانکدن او وفات

د هجرت ديارلسم کال د جمادي الثاني اومه ورځ دوشنبه وه ورځ ډېره يخه وه حضرت ابو بکر صديق η غسل وکولو ددې غسل له امله حضرت ابي بکر صديق η يخ ووهلو او تبه يې شوه دا تبه يې اوږده شوه تر پنځلسو ورځو پورې ورسېده تردې پورې چې دی مانځه ته هم نشوای وتلی او دده په امر باندې دده په ځای د امامت فرائض حضرت عمر η په ځای کول خلک به ورته پوښتنې ته راتلل او دی د خپلې بيماري په بستره باندې پروت وو او حالت يې ورځ تر ورځې خرابېدو او حضرت عثمان η به اکثر وخت د حضرت ابي بکر صديق η په کور کې تېرولو په کومه ورځ باندې چې وفات شو پدې ورځ حضرت عمر η دده د ليدلو لپاره ورغلو ده مبارک هغه ته وويل : عمره زه فکر کوم چې زه به نن مړ شم که چېرته زه مړ شوم له بېګاه نه وړاندې خلک خبر کړه او که د شپې مړ شوم نو تر ورځې وړاندې خلک خبر کړه او مصيبت د تاسې مشغول نه کړي زه تاته وصيت کوم او تا خپل خليفه جوړوم او ای عمره د الله χ په تقوی باندې درته وصيت کوم او پدې درته وصيت کوم چې الله χ کوم عمل په

شپه کې غواړي هغه په ورځ کې نه قبلوي او د ورځې عمل په شپه کې نه قبلوي (هر کار خپل وخت لري) او پدې پوه شه چې ترڅو فرض نه وي اداء

کړل شوي الله χ نفل نه قبلوي بېشکه د هغه کسانو تله درنده وي چې خپله تله د حق په متابعت سره درنده کړي او د هغه چا تله سپکه وي چې خپله تله د باطل په متابعت سره سپکه کړي او د چا په تله کې چې باطل وي د هغه سره مناسبه داده

چې هغه باید سپکه وي اللهχ د جنت خلک د هغوی په نېکو عملونو سره يادوي او د هغوی گناهونه ورته بښي ، کله چې ته هغه يادوې نو ته دا وايه چې زه پدې ډارېږم هسې نه چې زه د هغوی

له ډلې څخه يم او الله χ اهل النار د هغوی په بدو عملونو سره يادوي کله چې ته هغوی يادوې نو دا وايه چې زه اميد کوم چې زه به له دوی څخه نه وم کله د رحمت او کله د عذاب آيتونه

تلاوت کوه ترڅو بنده د الله χ لور ته په رغبت کې هم وي او په وېره کې هم وي او بنده بايد د الله

χ څخه د داسې څه تمه او اميد ونه کوي چې هغه حق نه وي ، انسان بايد خپل ځان په خپل لاس د هلاکت کندې ته وانه اچوي .

بيا په همدې ورځ باندې حضرت ابو بکر صديق η وفات شو .

په يو روايت کې د حضرت ابي بکر صديق η د وفات وجه دا وه چې په يهودو کې څه خلک وو هغوی په وريژو کې ورته زهر اچولو وو او په خوراک باندې ورسره عتاب بن اسد او صحابي الحارث بن

کلدة κ هم ناست وو هغه چې خوراک وکولو د حضرت

ابي بکر صديق η لاس يې ونيولو ورته يې وويل :

ای د رسول الله γ خليفه داسې خوراک د وکولو چې

پدې کې زهر دي او داسې زهر دي چې کله بدن ته ننوزي يو کال وروسته تاثير کوي ...

او د هغه خوراک چې کله يو کال پوره شو نو حضرت ابي بکر صديق د مرګ په بيماري باندې بيمار شو او هغه نور دوه کسان هم په همدې کال کې وفات شول الله χ د له دوی نه راضي شي .

ددې روايت له مخې بيا حضرت ابي بکر صديق η ته لوړه درجه د شهادت ورکړې ده چې خبيثو يهودو ورته زهرجن خوراک ورکړی دی او د هغې له امله په شهادت رسېدلی دی .

# د حضرت عمر η وفات او ځانکدن

حضرت عمر بن الخطاب η يو له خلفاء الراشدين څخه وو چا چې په رښتيا سره ددين لپاره قرباني ورکوله او ددين مرسته يې کوله ، هغه چې انس او جن شيطانان به ورڅخه ډارېدل ، هغه چې کفارو به ورسره کينه کوله او ډېره کينه ورسره يو مجوسي غلام کوله چې ابو لؤلؤ نومېدو.

په مدينه منوره کې نجار وو ... ژرندې به يې جوړولې او دا به يې له دوو تيږو نه جوړولې چې يو په بل باندې به يې کېښودلې او په مينځ کې به چې دانې ورغلې دا دواړه تيږې به يو په بل تاوول کېدلې هغه دانې به يې په مينځ کې ميده کولې ...

دا مجوسي غلام چې په زړه کې يې د حضرت عمر η لپاره کينه او نفرت پراته وو فرصت يې کتلو چې وخت پيدا کړي او حضرت عمر η شهيد کړي..

کله چې حضرت عمر η یوه ورځ په لاره کې ورسره مخامخ شو ورته یې وویل : زه خبر شوی یم چې تا ویلي دي که ته وغواړې نو ته داسې ژرنده هم جوړولی شې چې په باد باندې به چلیږي ؟

مجوسي غلام حضرت عمر η ته وکتل ورته یې وویل : هو زه به ستا لپاره داسې ژرنده جوړه کړم چې د مشرق او مغرب خلک به وربانډې خبرې وکوي..

حضرت عمر η هغه کسانو ته وکتل چې ورسره وو بیا یې وویل : دې غلام ماته یو ډول اخطار راکړو ...

وخت تېر شو غلام یو خنجر جوړ کړو چې دوه سرونه یې وو او د نیولو ځای یې په مینځ کې وو په هر طرف به یې چې څوک ولګېدل نو زخمي کولی یې شو ...

بیا یې په هغه باندې زهر ولګول ترڅو که څوک د زخم له امله مړه نه کړي نو چې څوک لږ هم زخمي کړي نو د زهرو له امله به یې قتل کړي ..

د شپې په تیاره کې راغلو حضرت عمر η ته د جومات په یوه کونج کې پټ شو ... په هماغه ځای کې وو تردې چې حضرت عمر η جومات ته راغلو او خلک یې مانځه ته پاځول بیا محراب ته مخکې شو او مونځ و دریدو چې کله یې تکبیر وویلو قرائت یې شروع کړو .. توره تیاره وه هغه وخت د امیر المؤمنین سره حفاظتي کسان هم نه وو ، په جومات کې د رڼا دومره انتظام هم نه وو ... هرڅه په نبوي طریقه باندې کېدل ...

مجوسي غلام له کونج نه پرې را ووتلو او په محراب کې یې امیر المؤمنین د مانځه په حالت کې د سترګو په رپ کې درې وارې ووهلو اول وار

يې په سينه کې ولګېدو ، بل يې په ډډه کې او دريم يې تر نامه (نو) لاندې ولګېدو ... حضرت عمر η يوه چغه وکوله او په زمکه باندې وغورځېدو .. او د قرآن کريم دا آيت يې تلاوت کاوه ... و کان امر ا لله قدراً مقدوراً (الله χ چې څه تقدير ليکلی وي هغه په کيږي) غلام په صفونو کې منډه کړه چې څوک به يې مخې ته درېدل هغه به يې وهلو تردې چې د جومات نه تر وتلو پورې يې ۱۳ کسان زخميان کړل آخر په يو ځای کې ودرېدو چې څوک به ور نېږدې کېدل هغه به يې وهلو يو کس راغلو چې پټو (ډبل څادر) ورسره وو هغه يې پرې ور واچولو مجوسي پوه شو چې ددې کس نه ځان نشي خلاصولی نو يې خپل ځان هم په همدې خپل خنجر باندې ووهلو ... ... حضرت عبد الرحمن بن عوف η مانځه ته وړاندې شو مونځ يې مکمل کړو .. حضرت عمر η د بې هوښې په حالت کې کور ته نقل کړل شو خلک ورسره روان وو ژړل يې ... په بې هوښې کې وو تردې چې نېږدې لمر راختلی وو کله چې را په هوښ کې شو شاوخوا خلکو ته يې وکتل اول پوښتنه چې له خلکو نه يې وکوله دا وه ... خلکو مونځ وکولو؟ دوی ورته وويل : هو بيا يې وويل الحمد لله ... لا اسلام لمن ترک الصلوة (د هغه چا لپاره اسلام نشته چې مونځ يې پرېښود) ..

اوبه يې را وغوښتې اودس يې وکولو اراده يې وکوله چې مانځه ته پاڅيږي لکن وس يې ونشو د زوی عبد الله لاس يې ونيولو هغه يې شا ته کېنولو هغه ته يې تکيه وکوله او کېناستو له زخمونو څخه يې وينې بهېدلې ...

حضرت عبد لله η فرمايي : والله ما په زخم باندې ګوته ايښوده چې وينه يې بنده کړم لکن نه

بندېده بيا مو ورته زخمونه په پټکيو سره وتړل او د سحر مونځ يې وکولو ..

بيا يې وفرمايل : ای ابن عباس η ته وګوره زه چا قتل کړم ؟

هغه مبارک ورته وويل : مجوسي غلام ووهلې او بيا يې څه نور مسلمانان هم ووهل او په آخر کې يې خپل ځان هم قتل کړو ..

حضرت عمر η وويل : د الله χ حمد او ثناء ده چې زما قاتل يې داسې څوک نه دی کړی چې هغه د الله χ لپاره يوه سجده کړې وي او په هغه سجده لما سره دليل ووايي ...

بيا طبيب راوستل شو چې د حضرت عمر η زخمونه وګوري هغه ورته د خورما شربت ورکړو ده مبارک چې هغه شربت و څښلو هغه راساً له زخمونو څخه را ووتلو د طبيب شک شو کېدای شي دا به وينه او زوې راوتلې وي نو يې شودې ورباندې و څښلې شودې يې تر هغه زخم نه راووتلې چې تر نو يې لاندې وو نو طبيب پوه شو چې وارونو يې بدن مکمل خراب کړی دی ...

بيا يې ورته وويل : امير المؤمنين که څه وصيت کول غواړې ويې کوه زما په ګمان ته به نن يا صبا وفات کيږې ...

حضرت عمر η ورته وويل : تا رښتيا وويل : که بل څه د ويلي وای نو ما به ستا تکذيب کړی وو (ما به نه وی منلې) بيا يې وويل والله که دا دنيا ټوله زما وی که فديه کېدای شوی ما به د الله χ په وړاندې د خپلو درېدلو نه فديه کړې وای

(ما به ورکړي وای چې لدې نه پرې خلاص شوی وای چې زه به د اللهχ په حضور کې درېږم)

حضرت ابن عباس η ورته وویل : ته دا خبره کوې الله χ د تا ته اجر درکړي لکن آیا ته هغه کس نه یې چې رسول الله γ له الله χ نه غوښتي وو چې ستا په اسلام سره الله χ ددین مرسته وکوي هغه وخت چې دوی په مکه کې ډارېدل؟ کله چې تا اسلام راوړو ستا اسلام د اسلام لپاره یو عزت او غلبه شوه .. بیا تا هجرت وکولو او ستا هجرت یوه فتح وه او بیا په یو ځای کې هم ته له رسول الله γ نه پاتې شوی نه یې کله به هم چې د مشرکینو سره جنګ او جهاد وو ته به د رسول الله γ سره ملګری وې بیا رسول الله γ وفات شو په داسې حالت کې چې هغه لتا څخه ښه خوشحال وو ..

او بیا د هغه نه وروسته د خلیفه (حضرت ابي بکر الصدیق η) سره د وزیر په توګه پاتې شوې او هغه هم په داسې حالت کې لتا څخه لاړو چې لتا نه پوره خوشحال وو ..

بیا د مسلمانانو امیر شوې او ښه وظیفه د وکوله الله χ ستا په برکت باندې ښارونه فتح کړل ، مالونه یې را ټول کړل ، اسلام ته یې ترقي ورکړه ، دښمن یې ورک کړو او بیا په آخر کې الله χ درته شهادت درکړو خوشحاله شه عمره...

حضرت عمر η وویل : ما کینوئ

ورته یې وویل : دا کومې خبرې د چې وکولې دا بیا وکوه ...

حضرت عبد الله ابن عباس η هغه خبرې ورته را غبرګې کړې ..

حضرت عمر η ورته وویل : ته به پدې خبرو زما لپاره ګواهي ورکړې؟

حضرت عبد الله ابن عباس η ورته وویل : هو ..

حضرت عمر η خوشحال شوو او د الله χ حمد او ثناء یې وویله

خلک ډلې ډلې ورته راتلل او له ده سره یې خدای په امانی کوله یو ځوان پدې خلکو کې راغلو ورته یې وویل : امیر المؤمنین ستا لپاره د خوشحالي او زیري خبره ده د رسول الله γ سره د ملګري وکوله او ښه ملګري د وکوله پداسې حالت کې هغه لتانه رخصت شو چې هغه ستا نه رضا وو ، بیا د له حضرت ابي بکر صدیق سره ملګري وکوله او ښه ملګري د وکوله او په داسې حالت کې هغه لتانه جدا شو چې هغه لتانه خوشحال او راضي وو ، بیا د مسلمانانو امارت درته حواله شو په ښه توګه د وکولو او پداسې حالت کې ترېنه رخصت کېږې چې داټول لتانه خوشحال دي او په آخر کې الله χ درته شهادت درکړو ... حضرت عمر η ورته وویل : ددې ټولو سره سره زما خوښیږي چې زه له دنیا نه سر په سر ووزم (ګناهونه مې د محوه شي او د نیکیو ثواب د نه راکول کیږي) .

ځوان ترې روان شو د هغه جامه لنګ په زمکه لګېده حضرت عمر η وویل : دا ځوان بېرته را وګرځوئ ... هغه ته یې وویل : اې وراره دا جامه د در پورته کړه د جامې له زمکې نه پورته ساتل ستا جامه پاکه ساتي او د الله χ خوښیږي

(سبحان الله پدې حال کې هم نصيحت او امر بالمعروف) بيا په حضرت عمر η باندې درد سخت شو کله به په هوش کې شو او کله به بې هوشه شو

حضرت عبد الله ابن عمر η فرمايي : چې بېهوشه شو نو ما يې سر پورته کړو په خپله غيږه کې مې کيښود کله چې په هوش کې شو ويل يې : سر مې په زمکه کيږده ... چې بېهوشه شو ما يې بيا سر پورته کړو په غيږ کې مې کيښود چې را په خود کې شو ويل يې : سر مې په زمکه کيږده ...

حضرت عبد الله ابن عمر η فرمايي : ما ورته وويل : پلاره زما غيږ او زمکه يو شان دي ... هغه

وويل : مخ مې په خاورو کېږده کېدای شي الله χ را باندې رحم وکوي .. کله مې چې ساه ووته نو قبر ته مې زر يوسئ ځکه يا به زما لپاره خير وي نو چې زر ورشم او يا به زه شر وم چې بيا تاسې راڅخه زر خلاص شئ ..

بيا يې يو څو خبرې وکولې او ويې ويل کاش د عمر مور عمر نه وای پيدا کړی د عمر لپاره هلاکت دی او د عمر د مور لپاره هلاکت دی که چېرته بښنه ورته ونشي ... بيا يې نفس تنګ شو او ځانکدن يې شروع شو او په حق ورسېدو ... **انا لله و انا اليه راجعون .**

## د حضرت عثمان η شهادت

د حضرت عثمان η د شهادت د وجې قصه اوږده ده خو زه يې له هغه ځای نه شروع کوم چې د حضرت

عثمان η قاتلينو دده مبارک کور محاصره کړی وو دا د هجرت ۳۵ کال د ذی الحجې د مياشتې ۱۷ تاريخ د پنجشنبې ورځ وه پدې ورځ باندې حضرت

عثمان η روږه وو ځینې صحابه وو φ کوښښ کاوه چې دده کور ته اوبه ور ورسوي ترڅو دی مبارک وربانديږ روږه ماته کړي لکن د محاصره کونکو له لوري نه یې مخه ونیول شوه ماښام شو د حضرت عثمان η په کور کې دومره څه نه وو چې ده وربانديږ روږه ماته کړې وای د شپې نا وخت دده مېرمن حضرت سیدة نائلة بن الفرافصة η د همسایه له کور نه د څه اوبو په پیدا کولو باندې وتوانېده کله یې چې اوبه ده مبارک η ته راوړې ده ته یې وویل : دا واخله روږه ماته کړه ... ده مبارک تر کړکۍ نه بهر وکتل ورته یې وویل : نه اوس سحر شوی دی سحر را ښکاره شوی دی او ما په ځان منلې وه چې زه به سبا روږه کېږم .

مېرمن یې ورته وویل : نو تا بیا خوراک او څښاک له کومه کړل؟

ده η ورته وویل : ما رسول الله γ ولیدو چې د اوبو ډولچې یې په لاس کې وه او لدې چت نه یې ماته اوبه راکړې ما دومره اوبه وڅښلې چې پرې موړ شوم بیا یې راته وویل : دا خلک به په تا باندې ظلم کوي که ته ورسره جنګ وکوې نو ته وربانديږ کامیابیږې او که ته له دوی سره جنګ ونه کوې سبا روږه به ته له موږ سره ماته کړې ... نو ده مبارک η وویل : ماته داسې ښکاره کیږي چې سبا الله χ ماته شهادت راکوي ...

د دې ورځې په سبا د جُمعې مبارکه ورځ د ذی الحجې د میاشتې ۱۸ تاریخ وو یو صحابي حضرت کثیر بن الصلت η ورغلو ورته یې وویل ته راوزه د کور په صحن کې کینه که ته د کور په صحن کې کینې دا خلک به لتا څخه خپله محاصره ماته کړي

او خپاره به شي (ده مبارک η ته الله χ یو ډول رعب ورکړی وو) او پدې وخت کې دده مبارک سپینه ږیره وه عمر یې له ۸۲ نه لوړ وو ..

ده مبارک ورته وویل : ما د شپې په خوب کې لیدلي دي چې زه رسول الله γ ته ورغلم حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر κ هم له ده مبارک γ سره ناست وو ماته یې وویل : ته څه ته به سبا له موږ سره روژه ماته کړې .

حضرت عثمان η وویل : نن چې څو پورې لمر لویږي زه به تر هغې وړاندې د آخرت له اهل څخه وم .

حضرت کثیر بن الصلت η دده η په امر له ده څخه را ووتلو او حضرت عثمان η ورته وویل : چې ماته یوه جامه برابره کړه چې وایې غوندم (لکه پرتوګ داسې) او دا په عادي حالاتو کې ده مبارک نه آغوستلو خو اوس پدې ډار شوی وو چې معلومه نه ده زه به په څه ډول حال کې ووژل شم هسې نه چې عورت مې ښکاره شي او د حضرت عثمان η د حیاء ستاینه رسول الله γ هم کړېده زیات حیاء ناک وو ..

په هغه جامه کې یې ځان په سمه توګه پټ کړو او قرآن کریم یې مخې ته کېښود تلاوت یې شروع کړو .

د وروستي ځل لپاره د صحابه وو φ زمریان زامن ورغلل ورته یې وویل : موږ ته امر وکوه چې لتا څخه دفاع وکوو او کنه نو دوی به په خپل سر تورې را واخلي او دا د شر لوښي خلک چې دی یې محاصره کړی دی له دی ځای نه ورک کړي حضرت

عثمان η تـولـو تـه قسم ورکړو او ورتـه یـې وویـل : چې زمـا پـه چـا بـانـدې یـوه ذره حق هم وي زه هغوی تـه قسم ورکـوم چې دوی بـه جنګ نـه کـوي دوی د مـا ووژنـي خو زه لـه دوی سره جنګ نـه کـول غـواړم او زه دا غـواړم چې د حضرت آدم ν د هغه زوی پـه ډول شم چې هغه ویـل : لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ * إِنِّي أُرِيدُ أَنْ تَبُوءَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ وَذَلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ .[1]

ترجمه :قسم دی خامخا که دی راوغځاوه تـا (ای قـابـیـلـه) مـاتـه لاس خپـل د پـاره د دې چې تـه ووژنـې مـا نـو نـه یم زه غځوونـکی د لاس خپـل تـاتـه چې ووژنـم تـا بېشکه زه ویـریـږم لـه الله چې رب (پـالـونـکی د ګردو (ټـولـو)) عـالـمیـانـو دی . پـه تحقیق زه اراده لـرم د دې چې رجوع وکړې (اختـه شې) تـه پـه ګناه د (وژلـو) زمـا او پـه ګناه خپـلې (چې پـخـوا دې کړی ده) نـو شې بـه تـه لـه صاحبـانـو (مـلـګریـو) د اور (د دوزخ) او هم دا (اور) دی جزا د ظـالـمـانـو (چې پـه نـاحقـه ویـنې تـویـوې).

او د ټـولـو نـه وروستـه چې تـرې را ووتـلـو هغه د رسول الله γ ګران لـمسی حضرت حسن بـن عـلـي η وو .

پـدې وخت کې هغه کسان چې د حضرت عثمان η کـور یـې مـحاصره کړی وو هغوی فـکـر وکـا کـه دا مـحاصره اوږده شي نـو کېدای شي لـه لـرې نـه دمسلـمانـانـو فـوځونـه مـدیـنـې تـه را ورسیـږي بـیـا بـه لـه هغوی سره دوی تـه مقـابـلـه کـول سخت شي نـو دوی وغوښتـل چې نـور هرڅنګه وي بـایـد حضرت عثمانη شهید کړي نـو پـدې وخت کې حضرت عثمان η تـلاوت کـاوه ددې

[1] سورة المائدة آیة ۲۸ او ۲۹

خلکو نه یو کس کنانة بن بشر التجیبي چې ددې شر د خلکو په سر کې وو ور وړاندې شو د حضرت عثمان η د کور دروازه یې وسوزوله بیا د فتنې نه ډک څه نور بد بخت کسان ور ننوتل په دوی کې یو کس وو چې الموت الاسود (تور مرګ) یې ورته ویل : ویل شوي چې دا عبد الله بن سبأ وو او یا بل څوک وو هغه د حضرت عثمان η په مرى مبارکه زور وکولو تردې چې ده فکر وکا چې په شهادت ورسېدو ..

بیا څه نور کسان ورننوتل چې دوی فکر کاوه شهید شوی دی لکن هغه ژوندی وو .. هغوی ورته وویل:

ته په کوم دین یې نعتله ... ..؟ (نعتل معنی ده کم عقل)

ده مبارک ورته وویل : زه په اسلام دین باندې یم او زه نعتل نه یم زه امیر المؤمنین یم .

هغه ورته وویل : تا د الله χ کتاب بدل کړی دی

ده مبارک ورته وویل : د الله χ کتاب دا دی زما او ستاسې په مینځ کې دی .

بیا کنانة بن بشر الملعون راغلو او توره یې را وویسته په ده مبارک یې وار وکولو او د حضرت عثمان η وینه مبارکه په قرآن کریم باندې ور تویې شوه او ټول روایات پدې متفق دي چې په قرآن کریم کې هغه وینه پدې ځای ور تویې شوې وه .. فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللهُ ...

بیا کنانة بن بشر الملعون په سر مبارک ووهلو دی مبارک په اړخ باندې چپه شو بل ځل یې غوښتل

چې په سینه کې یې ووهي حضرت نائلة η دده مبارک مېرمن راغله غوښتل یې چې د خپل وس مطابق له خپل خاوند نه دفاع وکوي د هغې مبارکې ګوتې ددې ملعون له تورې سره پرې شوې پدې توګه یو بل بد بخت سودان بن حمران راغلو او دی مبارک یې په ګېډه کې په توره ووهلو او پدې وارونو سره هغه مبارک په شهادت ورسېدو .

هغه کس په شهادت ورسېدو چې د رسول الله γ د دوو مبارکو لورانو سره یې واده کړی وو او رسول الله γ ورته ویلي وو که چېرته دده مبارک γ بله لور وای نو هم ده ته به یې ورکړې وه او هغه کس په شهادت ورسېدو چې په هره سختي کې د رسول الله γ سره ملګری وو او په متعددو ځایونو کې ورته د جنت زېری ورکړل شوی وو په خلفاء راشدینو کې دریم کس وو .

## د حضرت علي η شهادت

د حضرت علي η شهادت چې د کومې فتنې په نتیجه کې شوی دی قصه یې ډېره اوږده ده خو زه خپل مقصد ته ترېنه راځم چې هغه یوازې د حضرت علي η د شهادت واقعه ده .

د امت شقي عبد الرحمن بن ملجم یو بل کس ته ورغلو چې شبیب بن نجدة الشجعي ورته ویل کېدل هغه ته یې وویل : تاته د د دنیا او آخرت شرف په کار دی؟

هغه کس ورته وویل : هغه څه دی؟

ده ورته وویل : د علي η وژل

هغه ورته وویل : مور در باندې بوره شه ډېر سخت کار ته د اراده کړېده ته دا کولی شې؟

ددې امله چې حضرت علي η له یوې خوا تکړه انسان وو او له بلې خوا یې په جنګونو کې ډېر وخت تېر کړی وو او ښه تجربه یې درلوده او له بلې خوا ډېر زیات زړور وو او ددې ټولو د پاسه هغه اوس امیر المؤمنین وو نو شبیب بن نجدة الشجعي عبد الرحمن بن ملجم دېته هڅولو چې لدې عزم نه د واوړي دا سخت کار دی..

عبد الرحمن بن ملجم ورته وویل : په جومات کې ورته پټیږم کله چې د سحر مانځه ته راوزي نو حمله به پرې وکوم او قتل به یې کړم که چېرته زه په تېښته بریالی شم نو زړه به مې سکون پیدا کړي (له حضرت علي η سره دده زیاته دښمني وه) او خپل ارمان ته به ورسیږم او که چېرته زه هم ووژل شم نو هغه چې د الله χ سره دي هغه لدې دنیا نه غوره دي (مطلب یې دا وو چې الله χ به ماته ثواب راکړي) .

هغه ورته وویل : د الله χ عذاب در باندې نازل شه ته د هغه له شخصیت نه خبر یې په اسلام کې تر ټولو نه اول ماشوم وو ، د رسول الله γ سره یې خپلوي درلوده (د تره زوی یې دی) زه کله هم نشم کولی چې دېته زړه ښه کړم (زه نشم کولی چې د حضرت علي η قتل ته ځان تیار کړم) .

عبد الرحمن بن ملجم ورته وویل : ولې هغه په نهروان کې خلق قتل نه کړل؟ (نهروان یوه واقعه وه چې د حضرت علي η او خوارجو په مینځ کې تېره شوه او ګڼ شمېر خوارج پکې ووژل شول) پدې اړه یې دلیلونه ورته ویل تردې چې شبیب بن

نجدة یې دېته تیار کړو چې له ده سره پدې بد کار کې مرسته وکوي او پدې وخت کې عبد الرحمن بن ملجم ، برک بن عبد الله او عمرو بن بکر وعده سره وکوله چې په یوه ورځ به دوی ټول په یوه فارموله باندې حضرت علي η حضرت معاویة η او حضرت عمرو بن العاص η وژني او د دوی په گمان امت به د دوی له شر نه خلاصوي ..

دوی ټولو دا وعده وکوله چې دوی به دا مرگونه د جُمعې په ورځ د رمضان په ۱۷ باندې کوي نو برک بن عبد الله روان شو دمشق ته هلته حضرت معاویة بن ابي سفیان η وو او عمرو بن بکر فسطاط سیمې ته چې په مصر کې ده روان شو هلته حضرت عمرو بن العاص η وو او عبد الرحمن بن ملجم په کوفه کې پاتې شو دلته حضرت علي η وو ..

عبد الرحمن بن ملجم د رمضان تر ۱۷ پورې صبر وکولو چې کله حضرت علي η د سحر مانځه ته راووتلو په خلکو کې تېرېدلو مانځه ته یې پاڅول سره ددې چې حالات خطرناک وو خو ده مبارک η خپل ځان الله χ ته تسلیم کړی وو نه ورسره ساتونکی وو او نه ورسره بل څه حفاظتي تدبیر وو تردې چې د مانځه ځای ته نېږدې شو دلته شبیب بن نجدة (چې د عبد الرحمن بن ملجم سره یې د مرستې وعده کړې وه) په حضرت علي η باندې وار وکولو چې د هغې په نتیجه کې حضرت علي η په زمکه وغورځېدو لکن شهید نه شو عبد الرحمن بن ملجم ورته راغلو په هغه توره یې ورباندې وار وکولو چې زهر ورباندې لگول شوي وو دی مبارک یې په سر باندې ووهلو او وینې یې په ږیره مبارکه باندې راغلې ..

حضرت علي η اواز وکولو خلکو را ترف کړل شبيب بن نجدة په تېښته بريالی شو او عبد الرحمن بن ملجم يې ونيولو ..

حضرت علي η حضرت جعدة بن هبيرة η ته وويل : په خلکو باندې مونځ وکوه او دی مبارک کور ته نقل کړل شو دی مبارک η پدې پوه شو چې پدې توره باندې زهر لګو شوي دي او ددې املـه خو دی خامخا مړ کېدونکی دی او دا واقعه ټوله په هغه ډول وه چې يو وخت رسول الله γ ده ته د معجزې په ډول ويلي وو چې ته به پدې ډول باندې شهيد کېږې ...

عبد الرحمن بن ملجم يې را وغوښت ورته يې وويل : دا کار د ولې وکولو؟

هغه وويل : دا توره مې څلوېښت ورځې تېره کوله او له الله χ نه مې غوښتل چې پدې باندې د ټول مخلوق شر انسان قتل کړي ...

حضرت علي η ورته وويل : ماته داسې ښکاره کيږي چې ته به خامخا وژل کېږې او ستا دعاء قبوله شوه (يعني پدې خپله توره به ته ووژل شې او ته د ټول مخلوق شر يې) .

بيا يې خلکو ته وويل : که چېرته زه مړ شوم نو دی ووژنئ (د قصاص په ډول) او که چېرته زه ژوندی پاتې شوم زه به بيا وګورم چې دده په اړه څه وکوم .

حضرت جندب بن عبد الله η ورته وويل : امير المؤمنين که چېرته تاسې وفات شوئ موږ ستاسې د خلف صالح حضرت حسن η سره بيعت وکوو؟

حضرت علي η ورته وويل : نه مو منع کوم او نه درته پرې امر کوم .

کله یې چې ځانکدن شو په ژبه یې په مسلسله توګه چلېدل لا اله الا الله ... تردې چې آخري الفاظ یې همدا وو

حضرت حسن η وربانديې د جنازې مونځ وکولو ..

بیا یې عبد الرحمن بن ملجم راوستلو او دده په خپله توره باندې یې ووژلو ...

په همدې ورځ باندې برک بن عبد الله په حضرت معاویة باندې همداسې په همدې فارموله باندې حمله وکوله لکه حضرت معاویة η ورڅخه ځان وساتلو او په هغه باندې یې زور ونه رسېدو د برک بن عبد الله د تورې وار دده مبارک په زنګون باندې ولګېدلو لکن خلکو ورته علاج وکولو او الله χ هغه مبارک ته شفاء ورکړه .

هغه بل خبیث چې په حضرت عمرو بن العاص η پسې ورغلی وو هلته قسمت داسې وو چې پدې ورځ باندې حضرت عمرو بن العاص η بیمار وو د مانځه لپاره را ونه وتلو او خپل یو نائب یې را ولېږلو چې په خلکو باندې مونځ وکوي دې خبیث عمرو بن بکر فکر وکولو چې همدا عمرو بن العاصη دی حمله یې وربانديې وکوله او د حضرت عمرو بن العاص نائب خارجة یې په شهادت ورسولو خلک وربانديې را ټول شول دی یې ونیولو او قتل یې کړو او حضرت عمرو بن العاص η الله χ په خپل امان کې وساتلو او خلکو به ویل اراد عمراً و اراد الله خارجة (ده اراده کړې وه چې عمرو قتل کړي لکن د الله χ اراده وه

چې خارجه شهيد کړل شي) بيا دا متل پاتې شو په هغه ځای کې به ويل کېدلو چې کله به چا د يو کار اراده کړې وه او بل کار به وشو.

## د حضرت عائشې ι وفات

حضرت عبد الله بن عباس η راغلو پداسې حالت کې چې حضرت ام المؤمنين حضرت عائشه ι د خپل عمر په آخري لحظاتو کې وه اجازه يې وغوښته چې د ننه ورشي پدې وخت کې د حضرت عايشې η وراره عبد الله بن عبد الرحمن بن ابي ابکر الصديق φ له ده سره ناست وو سر يې پرې ور ښکته کړو ورته يې وويل : دا حضرت عبد الله بن عباس د راتلو اجازه غواړي...

دا مبارکه چې په سخت تکليف کې وه ويې ويل : پرې مې ږده له ابن عباس نه..

هغه ورته وويل : مورې دا ابن عباس ستا په اولاد کې يو نېک انسان دی (څرنګه چې دا ام المؤمنين ده نو ځکه يې ټول مسلمانان اولاد دی) ددې لپاره را ځي چې تاته سلام ووايي او لتا سره خدای په اماني وکوي ...

دې مبارکې وويل : که ستا خوښه وي نو اجازه ورکړه چې راشي ... هغه مبارک η فرمايي بيا ما حضرت عبد الله بن عباس η ته اجازه ورکړه چې کوټې ته ننوزي هلته يې ام المؤمنين ι ته وويل : ام المؤمنين زيرى قبول کړه ...

دې مبارکې ورته ويل : په څه خبره؟

ده η ورته وویل : پدې خبره چې ستا او د رسول الله γ او د حضرت ابي بکر صديق η او نورو نيکانو سره په ملاوېدلو کې صرف دومره وخت دی چې يو روح وزي او دا چې ته رسول الله γ ته په ټولو کې ګرانه بي بي وي او رسول الله γ ته به صرف پاک او طيب شيان ګران وو او کله چې ستا غاړکی د ابوا په دښته کې ورکه شوه رسول الله γ او د هغه صحابه کرام φ پداسې حالت کې وو چې له دوی سره اوبه نه وي بيا رسول الله γ د تيمم آيت نازل کړو ټول امت ته دا سهولت ستا له برکته حاصل شو ، کله چې څه کسانو په تا باندې تور ولګولوو γ ستا پاکي له اوو اسمانونو له پورته څخه را نازله کړه ملائکې راوړه اوس داسې جومات په دنيا کې نشته مګر ستا د پاکي آيتونه پکې تلاوت کيږي ...

دې مبارکې η ورته وويل : ابن عباس دا خبرې پرېږده زما د قسم په هغه ذات وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی زه دا خوښوم چې بالکل داسې شوې وای چې چاته په ياد نه وای ...

دا مبارکه د رمضان په اوه ويشتمه شپه د هجرت په اولسم او يا آتلسم او نولسم (روايتونه مختلف دي) کال باندې وفات شوه .. حضرت ابو هريره η وربانديې د وتر مانځه نه وروسته مونځ وکولو او په بقيع کې خاورو ته وسپارل شوه .

## د ځانکدن په اړه مختلفې واقعې

کله چې د حضرت ابي بکر الصديق η ځانکدن شو ويې ويل : وَجَاءتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ذَلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ (19) .[1]

ترجمه: او راغلی بی هوشی سختی د مرگ لپاره د دې چې په سترگو ئې وويني په حق سره دا مرگ هغه دی چی وې به ته له ده څخه په ځنگ کېدونکی او نه وې پرې اقرار کوونکی .

بيا يې حضرت عائشې ι ته وويل : دا زما دواړه جامې واخلئ او دا وينځئ او بيا ماته ترېنه کفن جوړ کړئ ځکه که تاسې ما ته د نوې جامې نه کفن جوړوئ نو تر مړي نه خو نوې جامې ته د ژوندي ډېر ضرورت وي .

## حضرت عثمان η

حضرت عثمان η چې کله د ظالمانو لخوا ووهل شو په ږيره مبارکه باندې يې وينې را رواني وې او ويل يې : لا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ. إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ او دعاء يې کوله : ای الله χ زه لتانه د هدايت سوال کوم او لتانه زما په ټولو کارونو کې مرسته غواړم په بلا باندې درڅخه دصبر سوال کوم کله چې شهيد شو دده خزانه وکتل شوه يو صندوق وو چې قلف ورته لگېدلی وو هغه يې را خلاص کړو په هغه کې يوه ورقه پرته وه چې پکي ليکل شوي وو .

دا د عثمان وصيت دی

بسم الله الرحمن الرحيم

---

[1] **سورة ق**

عثمان ابن عفان ددې ګواهي ورکوي چې الله χ يو دی شريک نلري او محمد د الله χ بنده او رسول دی، جنت حق دی ، دا حق دي چې الله χ به ټول مخلوقات د داسې ورځې لپاره را پورته کوي چې په هغې کې شک نشته حضرت عثمان په همدې باندې ژوند کړی دی ، په همدې باندې مړی شوی دی ، او په همدې باندې به را پاڅيږي **ان شاء الله** .

## حضرت علي η

کله چې حضرت علي η ووهل شو چې لېږ را په خود کې شو پوښتنه يې وکوله : هغه کس چې زه ووهلم څه مو ورسره وکول؟ دوی ورته وويل : نيولی مو دی حضرت علي η وفرمايل : زما له خوراک نه خوراک ورکړئ او زما له اوبو نه اوبه ورکړئ که چېرته زه ژوندی پاتې شوم بيا به زه فکر پکې وکوم چې څه ورسره وکوم او که زه مړ شم نو صرف يو وار به يې ووهئ او د هغې نه به نور زياتی ورسره نه کوئ .. بيا يې حضرت حسن η ته وصيت وکولو چې ته به غسل راکړې او کفن به قيمتي راته نه جوړوې ځکه ما له رسول الله γ نه آوردلې دي چې فرمايل يې : کفن قيمتي مه جوړوئ ځکه دا ډېر زر لتاسې نه ويستل کيږي ... کله چې زما جنازه وړئ نو په درميانه حرکت سره مې يوسئ نه ډېر په منډو نه ډېر په ورو .. که چېرته زما عاقبت ښه وي نو چې زر مې ور ورسوئ او که چېرته خراب وي بيا به زه يو شر وم زر مې له خپلو اوږو نه ښکته کړئ .

## حضرت ابو ذر غفاري η

کله چې د حضرت ابي ذر غفاري η ځانکدن شو په دښته کې وو مېرمن یې په ژړا شوه ده ورته وویل : ولې ژاړې؟ دې مبارکې ورته وویل : ولې به نه ژاړم ته پداسې دښته کې مړ کیږې او زموږ سره دومره جامه نشته چې تاته د کفن لپاره بس شي ..

ده ورته وویل : ژاړه مه او زیری قبول کړه ما له رسول الله γ نه آورېدلي دي چې فرمایل یې یوې ډلې ته چې زه هم په هغوی کې وم : لتاسې نه به یو کس په دښته کې مړ کیږي بیا به یوه ډله د مؤمنانو وربانديې راشي .. او رسول اللهγ چې د مونږ ډلې ته خبرې کولې د هغې ډلې نه ټول خلک اوس مړه دي او ټول په ا باده کې مړه شول او دا زه یم چې په دښته کې مړ کېږم والله نه خو رسول الله γ دروغ ویلي دي او نه ما دروغ ویلي دي ته لارې ته وګوره ..

دا مبارکه فرمایي چې ما لارې ته وکتل هلته یوه ډله حاجیان تېرېدل ما ورته خپله جامه وښوروله له هغوی نه یو کس راغلو راته یې وویل : یا امة الله څه خبره ده؟ ما ورته وویل یو سړی دی پدې دښته کې هغه وفات کیږي تاسې به د هغه په تجهیز کې مرسته وکوئ؟

هغه کس وویل: څوک دی؟ دې مبارکې ورته وویل : ابو ذر ... دوی وویل : هغه د رسول الله γ صحابي ؟ دې مبارکې ورته وویل : هو

بیا هغوی ټول ورته راغلل او ورته یې وویل : زموږ مور او پلار لتا نه زار شه بیا ده مبارک η هغه حدیث ورته بیا تکرار کړو کوم یې چې ماته ویلی وو او بیا یې ورته وویل : زه تاسې ته وصیت کوم چې هغه څوک چې مشهور وي ، مالدار

وي ، امير وي د هغه له جامې نه به ماته كفن نه راكوئ په دې خلكو كې ټول خلك مالدار وو صرف يو كس غريب وو چې له انصارو څخه وو د هغه له جامې نه يې ورته كفن جوړ كړو په ډله كې حضرت عبد الله ابن مسعود η هم وو هغه وربانديې د جنازې مونځ وكولو او بيا يې په شريكه بانديې دفن كړو **رضى الله عنهم اجمعين .**

## حضرت ابو الدرداء η

كله چې د حضرت ابي الدرداء η ځانكدن وو ويې ويل :

يو كس زما ددې حالت لپاره (په كوم حالت كې چې زه يم) كار نه كوي؟

يو كس زما ددې ورځې لپاره (په كومه ورځ كې چې زه يم) كار نه كوي؟

يو كس زما ددې ساعت لپاره كار نه كوي؟

كلمه يې وويله او ساه يې وركړه .

## حضرت عبد الله بن مسعود η

كله چې د حضرت عبد الله بن مسعود η ځانكدن شو خپل زوى يې را وغوښت ورته يې وفرمايل : اى عبد الرحمن بن عبد الله بن مسعود زه تاته په پنځو نصيحتونو سره نصيحت كوم لما څخه يې وساته :

1. د خلكو سره چې كوم شيان دي له هغو نه ځان نا اميده كړه (تمه چا ته مه كوه) ځكه دا غوره غناء ده .

2. چې څه حاجت د وي له خلکو نه يې مه غواړه ځکه دا يو ډول موجوده او حاضره غريبي ده .
3. داسې کار مه کوه چې له امله يې ستا عذر ويلو ته ضرورت کيږي .
4. که د کولی شوای چې پتاد داسې ورځ رانشي مګر ته په پرون نه پکې غوره وې نو ويې کوه .
5. کله د چې مونځ کولو داسې مونځ کوه لکه دا چې ستا د ژوند آخري مونځ وي.

## حضرت معاوية η

کله چې د حضرت معاوية η ځانکدن وو چې شاوخوا ته ورته خلک ناست وو هغوی ته يې وويل : ما کينوئ .. کله يې چې کينولو د الله χ ذکر يې شروع کړو بيا په ژړا شو او ويې ويل : (ځان ته يې خبرې کولې) معايه اوس ته راغلې د الله χ ذکر کوې وروسته له ورانېدلو .. دا کار په ځواني کې نه وو په کار ...؟ (اما كان هذا و غض الشباب نضير ريان؟) بيا په ژړا شو بيا يې وويل : ای ربه ، اې ربه پدې زوړ ګناهکار چې د سخت زړه خاوند دی رحم وکړه ، ای الله χ ګناهونه او خطاګانې وبښه ، په خپل حلم او نرمي باندې د هغه چا سره معامله وکوه چې ستا نه بغير د بل چا نه اميد نه کوي او نه ستا نه بغير په بل چا باندې اعتماد کوي ... دا خبره يې وکوله او ساه يې ورکړه .

## حضرت عمرو بن العاص η

کله چې د حضرت عمرو بن العاص η ځانکدن شو ډېر يې وژړل مخ يې ديوال ته کړو زوی يې ورته

وويل : پلاره ته په څه ژاړې؟ تاته رسول الله γ د جنت زيرى نه دى درکړى؟ ..

حضرت عمرو بن العاص η مخ دوى ته را واړولو او ويې ويل : غوره شى چې موږ يې ګڼو ددې ګواهي ورکول دي چې د الله χ نه بغير لائق د عبادت نشته او دا چې محمد د الله χ رسول دى زه په دريو حالتونو کې وم .

يو وخت پداسې حالت کې وم چې په دنيا کې د محمد γ سره تر ما زيات کينه کونکى څوک نه وو او لما نه زيات د بل چا زړه نه کېدو چې کاش په ده بانديې برلاسى شوى واى چې قتل کړى مې و اى که په هغه حالت کې مړ شوى واى نو زه به دوزخي شوى وم ..

کله چې اسلام زما په زړه کې ځاى پيدا کړو رسول الله γ ته راغلم ما ورته وويل : لاس د را اوږد کړه چې بيعت درسره وکړم .. هغه مبارک لاس را اوږد کړو ما ترېنه لاس ونيو ... رسول الله γ راته وويل : ولې عمرو ..؟ ما ورته وويل : زه په بيعت کې شرط کېښودل غواړم .. رسول الله γ راته وويل : د څه شرط کېښودل غواړې؟ ما ورته وويل : دا چې زما لپاره به بښنه کيږي ... رسول الله γ راته وويل : ولې ته پدې نه يې خبر چې اسلام پخواني ټول ګناهونه ختموي؟ هجرت مخکني ټول ګناهونه ختموي؟ حج مخکني ټول ګناهونه ختموي؟ .. پدې وخت کې ماته له رسول الله γ نه ډېر ګران هېڅوک هم نه وو ، او له رسول الله γ څخه څوک ډېر خواږه زما لپاره نه وو ، ما به چې څومره ورته کتل زه يې په کتلو نه مړېدم خو د هغه زما په زړه کې دومره قدر او لويي وه چې ما هغه ته په

ډکه سترګه نشواى کتلى که زه په هغه حالت کې مړ شوى وى نو زما امید دى چې زه به جنتي وم .

بیا مونږ د څه شیانو مالکان شوو ، حالات بدل شوو زه نه پوهېږم چې په هغې کې زما حال څه دى؟ دا زه چې کله مړ شوم په ما باندې به څوک چیغې نه وهي کله مو چې خاورې را باندې واړولې نو قبر مې برابر کړئ بیا زما د قبر په خوا کې دومره کینئ لکه څوک چې اوښ حلال کړي او غوښې یې تقسیم کړي ترڅو زه په تاسې باندې ډاډه وم ترڅو زه په اطمنان سره وم چې د الله χ فرښتو ته څه ځواب ورکوم .

# حضرت ابو موسى الاشعري η

کله چې د حضرت ابي موسى الاشعري η ځانکدن را نېږدې شو خپل زامن یې را وغوښتل او ورته یې وویل : ځئ لاړ شئ زما لپاره قبر وباسئ او ښه یې ژور کړئ .. هغوى لاړل قبر یې ورته وویستلو او دده د امر مطابق یې هغه ورته ښه ژور کړو ده ورته وویل : ما کینوئ کله یې چې کینولو ویې ویل : اوس زما دوه حالتونه دي یا خو به دا قبر ماته دومره فراخیږي چې هر لوري ته به راته څلویښت متره ازادیږي او له هرې خوا به ماته د جنت دروازه را خلاصیږي ترڅو زه له هغې دروازې نه په جنت کې خپل ځاى ووینم او هغه څه ووینم چې الله χ ماته تیار کړي دي او د هغې له لیدلو نه به د قیامت تر ورځې پورې ماته خوشحالي رسیږي او یا خو به دا قبر په ما باندې دومره را تنګیږي چې زما اندامونه یو له بل نه تېر کړي تردې چې له تنګ نه به هم تنګ شي او د جهنم نه به ماته دروازه را خلاصه شي او ما ته به هغه ځاى ښکاره کیږي کوم چې الله χ ماته تیار کړى دى له مصیبتونو او تکلیفونو

ځکه ډک او تر قیامت پورې به ماته د هغه د لیدلو نه عذاب راکول کیږي او د هغې عذا بونه به ماته تر قیامت پورې را رسیږي .

## حضرت سعد بن الربیع η

کله چې د اُحد غزوة پای ته ورسېده رسول الله γ وویل : څوک به لاړ شي وبه ګوري چې د سعد بن الربیع څه حال دی؟ یو کس را روان شو د صحابه ووφ په شهیدانو کې یې سترګې غړولې چې حضرت سعد بن الربیع η یې پداسې حالت کې ولید چې ساه پکې وه ده ته یې اواز وکولو څه کوې؟ ده ورته وویل : زه رسول الله γ را ولېږلم چې وګورم ستا څه حال دی؟ حضرت سعدη ورته وویل : رسول الله γ ته زما سلام وایه او دا خبر ورکړه چې زه مړ کېدونکی یم او ورته ووایه چې ما ۱۲ زخمونه برداشت کړي دي او د همدې نه وفات کېږم او زه خامخا وفات کېدونکی یم او زما د لوري نه زما قوم ته سلام ورسوه او ورته ووایه که چېرته په تاسې کې د یو نفس ساه وي او رسول الله γ ته څه تکلیف ورسیږي ستاسې لپاره به د قیامت په ورځ هیڅ عذر نه وي .

# حضرت عبادة بن صامت η

کله چې د حضرت عبادة بن صامت η ځانکدن نېږدې شو وئې ویل زما بستره صحن ته وباسئ بیا یې وویل : ماته ټول زما غلامان، خادمان ، همسایه ګان او نېږدې خپلوان چې زمونږ کره به راتلل را ټول کړئ ... هغه ورته را ټول کړل شول ده ورته خبرې شروع کړې ورته یې وویل :

زه فکر کوم چې دا نن ورځ زما د دنیا د ورځو آخري ورځ ده او راتلونکې شپه زما د آخرت لمړی شپه ده او زه نه پوهېږم کېدای شي زما د لاس او یا ژبې نه تاسې ته څه تکلیف رسېدلی وي زما د په هغه ذات قسم وي چې د عبادة نفس د هغه په لاس کې دی قصاص د قیامت په ورځ ډېر مشکل دی مخکې لدې چې زما څخه زما نفس وزي نو چې د چا را باندې څه قسم بدل وي راڅخه واد خلي ... خلکو ورته وویل : نــــــــه ته خو لکه زمونږ پلار داسې وې او تا خو مونږ ته ادب راکولو ..

ده ورته وویل : ښه تاسې ماته زما له لوري که کوم زیاتی شوی وو وبښلو؟

دوی ورته وویل : هــو بیا یې وویل : یا الله χ ته د دوی پدې خبره ګواه اوسه.........

بیا یې خلکو ته وویل : ښه ده نو زما وصیت یاد ساتئ ... زه تاسې ته وصیت کوم چې تاسې به نه ژاړئ کله چې زما نفس وزي نو تاسې اودس وکوئ او ښه اودس وکوئ جومات ته لاړ شئ مونځ وکوئ د

ځان او عبادة لپاره د بښنې دعا وغواړئ الله χ فرمایي : په مانځه او صبر سره مرسته وغواړئ

دا سخت کار دی مګر هغه چې له الله χ نه ډاریږي د

هغوى لپاره سخت نه دى .. بيا مې په خښولو باندې تادي وكوئ او زر مې خښ كړئ .

## حضرت حسن بصري ρ

كله چې د حضرت حسن بصري ρ ځانكدن شو دواړه لاسونه يې وښورول او ويې ويل : دا وخت د صبر او الله χ ته د تسليمېدلو دى .

## حضرت محمد بن سيرين ρ

كله چې د حضرت محمد بن سيرين ρ ځانكدن شو په ژړا شو .. چا ورڅخه د ژړا د وجې پوښتنه وكوله ده وويل : په هغه ورځو كې چې لما سره فرصت وو په هغه كې مې څه نه كول په هغه ورځو او هغه فارغو وختونو باندې ژاړم چې د هغې په اړه زه اوس هېڅ هم نشم كولى د هغه عالي جنت د حاصلولو لپاره او د هغه ګرم اور نه د ځان خلاصولو لپاره ما هېڅ هم ونه كول .

## حضرت عمر بن عبد العزيز ρ

كله چې هغه بزرګ ، عارف ، زاهد او تقوى دار خليفه ته مرګ راغلو او د ځانكدن حالت يې را نېږدې شو خپلو زامنو ته يې نصيحت كاوه او ورته يې وويل : بچيانو ما په خلكو كې ستاسې لپاره حق پرېښى دى (له هغوى سره مې داسې رويه كړېده چې ستاسې به قدر كوي) تاسې چې د هرچا په خوا كې تېرېږئ هغه به په ځان باندې ستاسې لپاره څه حق ګڼي او مني بچيانو زه تاسې ته په دوو شيانو كې اختيار دركوم يا دا چې تاسې به مالدار ژوند كوئ خو بيا به دوزخ ته ځئ او يا دا چې غريبانه ژوند به كوئ بيا به تاسې جنت

ته ځئ خو زه ستاسې لپاره د غربت ژوند خوښوم چې تاسې جنت ته ورسوي دا له هغه مالداري ژوند نه ستاسې لپاره ښه دى چې تاسې دوزخ ته ورسوي

پاڅيږئ الله χ د په تاسې باندې رحم وکوي ، په روا سره د حلال مال طلب وکوئ ځئ لما څخه پاڅيږي زه په خپله خوا کې داسې مخلوق وينم چې ورو ورو په زياتېدو دى هغوى نه انسانان دي او

نه پېريان دي مسلمة دده ρ زوى وايي بيا موږ ورڅخه پاڅېدو او دى مو پرېښودو او موږ ترېنه يوې خوا ته شوو غوږ مو ورته کېښود چې دده مبارک ρ فرمايل : **تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا ۚ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ** . [1]

ترجمه : دغه کور د آخرت (چې جنت دى) ورکوو موږ دا د پاره د هغو کسانو چې نه لري اراده د لوئي (تکبر) په ځمکه کې او نه فساد ظلم کوي (پر خلقو) او عاقبت ښه خاتمه د پاره د پرهيزګارانو ده .

بيا يې اواز ښکته شو .. موږ پاڅېدو ور ننوتلو .. چې ومو کتل دده مبارک ρ ساه ورکړې وه ...

## امير المومنين خليفه مامون ρ

کله چې دده ځانکدن شو شاوخوا خلکو ته يې وويل : له کټ نه مې ښکته کړئ .. کله يې چې زمکې ته را ښکته کړو ده خپل مخ په زمکه کېښود او ويې ويل : اى هغه ذاته چې دده بادشاهي نه زائليږي ... په هغه چا باندې رحم وکوه چې بادشاهي يې زائله شوه ....

## خليفه عبد الملک بن مروان

[1] سورة القصص آية ٨٣

کله چې عبد الملک بن مروان ته مرګ راغلو ویې ویل : پورته مې کړئ .. دوی پورته کړو نفس یې واخیستو او ویې ویل : دنیا تاته چا ښه ویلي دي؟ ستا اوږد هم لنډ دی (کوم حالت ته چې دلته خلک اوږد حالت وایي دا هم لنډ وي) او ستا ډېر شی هم سپک وي .. بېشکه موږ ستا په اړه هر وخت په دوکه کې یو ...

## خلیفه هشام بن عبد الملک

کله چې د هشام بن عبد الملک ځانکدن شو خپل اهل یې شاوخوا ته ناست وو ژړل یې هغوی ته یې وکتل ورته یې وویل : هشام تاسې ته دنیا راوړه او تاسې هغوی ته له ژړا سره راغلئ او کوم شی چې هغه جمع کړل هغه هرڅه یې ستاسې لپاره پرېښودل او تاسې ده ته هغه څه ور پرېښودل چې ده په غاړه اخیستي دي (تاسې دی او د هغه عمل سره پرېښودل) د هشام لوی مصیبت دا دی که الله χ په ده رحم ونه کوي .

## خلیفه هارون رشید ρ

کله چې د هارون رشید بیماري سخته شوه او طبیبان یې له شفا نه نا امیده شول او پدې پوه شو چې اځل مې را نېږدې شوی دی نو خلکو ته یې وویل : ماته کفنونه راوړئ کفنونه یې ورته راوړل ... بیا یې ورته وویل : قبر راته و کیندئ قبر یې ورته وویستلو .. ده خپل قبر ته وکتل او ویې ویل :

مَا أَغْنَى عَنِّي مَالِيهْ (28) هَلَكَ عَنِّي سُلْطَانِيهْ (29) . [1]

[1] سورة الحاقة

ترجمه : هیڅ دفع ونه کړه له ما ځنې مال زما برباد شو له ما ځنې سلطنت حکومت زما .

## حضرت معاذ η

کله چې د حضرت معاذ η ځانکدن وو ویې فرمایل :

ای الله χ زه لتا څخه ډاریدم او اوس درته امید

کوم ، ای الله χ ته پوهیدې چې زما دنیا خوښه نه وه او په دنیا کې مې د نهرونو د بهولو او د ونو د کېښودلو لپاره پاتې کېدل نه وو خوښ بلکه ستا لپاره د تندې تېرولو ، تکلیف تېرولو او د علماوو مجلس ته د ذکر په حلقو کې د شرکت لپاره د ورتللو لپاره مې په دنیا کې پاتې کېدل خوښ وو .

## حضرت سلمان فارسي η

کله چې د حضرت سلمان فارسي η ځانکدن شو په ژړا شو چا ترې پوښتنه وکوله ولې ژاړې؟ ده مبارک وفرمایل :

**ما أبكي جزعا على الدنيا، ولكن عهد إلينا رسول الله صلى الله عليه وسلم أن تكون بلغة أحدنا من الدنيا كزاد الراكب.**

ترجمه : زه پدې نه ژاړم چې دنیا رانه پاتې

کیږي بلکه پدې ژاړم چې رسول الله γ موږ ته ویلي وو چې په دنیا کې ستاسې دولت باید صرف دومره وي لکه د مسافر توښه .

او کله چې وفات شو دده نه چې کوم شی پاتې وو چې هغه ټول وکتل شول څولس (لس او څه د پاسه) درهمه کېدل .

امام شعبي ρ فرمايي : حضرت سلمان فارسي η ته د جلولاء د فتح په ورځ د مسکو يوه وړوکې کڅوړه رسېدلې وه مېرمن ته يې ورکړې وه چې دا وساته کله يې چې د ځانکدن وخت شو مېرمن ته يې وويل : ورشه هغه مسک راوړه کله يې چې هغه ورته راوړل ده ورته وويل : دا په اوبو کې ګډ کړه او زما شاوخوا ته يې وشينده اوس داسې څه مېلمانه راځي چې د هغوی شه بوی ډېر شه ايشي

... دوی همداسې وکول دی مبارک η په همدې حالت کې د لنډې لحظې لپاره پروت وو چې بيا يې ساه ورکړه نو خلک پوه شول چې هغه راغلي مېلمانه

ده مبارک η فرښتې يادولې .

## حضرت بلال η

کله چې د حضرت بلال η ځانکدن وو مېرمن يې وويل : هی افسوس ... ده ورته وويل : **"بل واطرباه ! غدا نلقى الأحبة محمدا وحزبه."** (اې خوشحالي سبا به موږ د دوستانو سره ملاقي کيږو محمد γ او د هغه له ډلې سره) .



کله چې د حضرت عبد الله بن مبارک ρ ځانکدن وو سترګې يې خلاصې کړې او ويې خندل او بيا يې وفرمايل : **لمثل هذا فليعمل العاملون** (د داسې حالت لپاره د عمل کونکي عمل وکوي)



کله چې د حضرت ابراهيم النخعي ρ ځانکدن شو په ژړا شو ... چا ترېنه پوښتنه وکولې ولې ژاړې؟ ده مبارک ρ ورته وفرمايل : **أنتظر من الله رسولا يبشرني بالجنة أو بالنار** (زه اوس ددې انتظار کوم چې د الله χ له لورې کوم رسول راشي ماته يا د جنت او يا د دوزخ خبر راکړي) .



کله چې د حضرت ابن المنکدر ρ ځانکدن شو په ژړا شو .. چا ترېنه د ژړا د وجې پوښتنه وکوله ده وويل :

**"والله ما أبكي لذنب أعلم أني أتيته، ولكن أخاف أني أتيت شيئا حسبته هينا وهو عند الله عظيم."**

ترجمه : و الله زه ددې امله نه ژاړم چې ما کومه ګناه کړېده بلکه زه پدې ډارېږم چې ما به کوم کار کړی وي ماته به وړوکی ښکاره شوی وي او هغه به د الله χ په وړاندې لوی وي .



کله چې د حضرت عامر بن عبد القيس ρ ځانکدن شو په ژړا شو چا ورڅخه پوښتنه وکولې ولې ژاړې؟ ده وويل :

**"ما أبكي جزعا من الموت ولا حرصا على الدنيا، ولكن أبكي على ما يفوتني من ظمأ الهواجر، وعلى قيام الليل في الشتاء."**

ترجمه : داسې نه ژاړم چې زه له مرګ نه ډارېږم او نه په دنيا کې د حرص له امله ژاړم بلکه په

هغه روژو ژاړم چې په ګرمي کې رانه پاتې شوې او هغه د شپې مونځ چې په ژمي کې راڅخه پاتې شوی دی .



کله چې د حضرت فضیل بن عیاض ρ ځانکدن وو بې هوښه شو کله یې چې سترګې خلاصې کړې په افسوس سره یې وویل : " :وابعد سفراه ! واقلة زاداه."! (اې زما اوږده سفره او زما لږې توښې)



کله چې د حضرت ابن مبارک ρ ځانکدن وو خپل ازاد کړل شوي غلام نصر ته یې وویل : سر مې په زمکه کېږده نصر په ژړا شو ... ابن مبارک ρ ورته وویل : ولې ژاړې؟ ده ورته وویل هغه وخت مې یادیږي چې ته په نعمتونو کې وې او دا اوس په داسې غربت کې یې ... ده ورته وویل : چُپ شه ما له الله χ نه سوال کړی وو چې ماته ژوند لکه د مالدارانو داسې راکړي او مرګ لکه د غریبانوداسې راکړي بیا یې ورته وویل : ماته د تشهد کلمه وایه ..



د یو عالم ځانکدن وو په ژړا شو چې د ژړا د وجې پوښتنه ترې وشوه ده ورته وویل په قرآن کریم کې یو آیت دی هغه مې ژړوي الله χ فرمایي : إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ (الله χ یې د متقیانو څخه قبلوي) .



امام جريري ρ فرمايي : د جنيد ρ سره په ځانكدن كې وم د جُمعې ورځ وه او د نوروز ورځ وه دی لګيا وو تلاوت يې كاوه قرآن كريم يې ختم كړو ما ورته وويل ابالقاسم پدې وخت كې؟ ده وويل : زما نه څوک پدې سره زيات لائق دی دا وګوره زما عملنامه نوره تړوليږي؟



يو عالم فرمايي : زه د ممشاد الدينوري ρ سره وم چې يو فقير راغلو عجيب حالت يې وو په مينه يې وويل : السلام عليكم .. دلته داسې ځای پاک ځای شته چې يو انسان پكې مړ شي؟ په خوا كې د اوبه چينه وه چا ورته هغه ځای ته اشاره وكړه فقير ورغلو هلته يې ښه اودس وكولو او څه مونځ يې وكولو او لږ له چينې لرې شو هلته څملاستو او پښې يې وغزولې او مړ شو .. **سبحان الله** .



د حضرت ابي علي الروذباري ρ مباركه خور فاطمه υ قصه كوي چې كله د ابي علي الروذباري ρ ځانكدن شو سر يې زما په غېږ كې وو سترګې يې خلاصې كړې ويې ويل : **هذه أبواب السماء قد فتحت، وهذه الجنان قد زينت** (دا دي د اسمان دروازې خلاصې شوې او جنتونه ښائسته كړل شول) .



کله چې د جنید ρ ځانکدن وو چا ورته وویل : وایه **لا اله الا الله** ... پداسې حالت کې چې دده حالت ډېر خراب وو چې په هغه وخت کې د چا دماغ او ذهن کار نه کوي ده وویل : نه ده راڅخه هېره شوې په یاد مې ده .



جعفر بن نصیر ρ د بکر الدینوري ρ د یو خادم الشبلي ρ نه پوښتنه وکوله : له هغه نه د څه خاص لیدلي وو؟ ده وویل کله چې دده ځانکدن وو ماته یې وویل : اودس را وکوه ما اودس ور وکولو پدې وخت کې هغه وخت وو چې دده ژبه بنده شوې وه خبرې یې نشوای کولی ... ما ټول اودس په سمه توګه ور وکولو خو د ږیرې خلال رانه پاتې شوی وو ده زما لاس واخیستو او په خپله ږیره کې یې ننه ایستو (ترڅو د ږیرې خلال پرې وکوي چې په اوداسه کې یو ادب دی) پدې سره جعفر بن نصیر ρ په ژړا شو او ویې فرمایل :
**"ما تقولون في رجل لم يفته في آخر عمره أدب من آداب الشريعة؟."**
(د هغه کس په اړه تاسې څه وایاست چې د ژوند په آخري برخه کې هم ورڅخه د شریعت له ادبونو څخه کوم ادب پاتې نشو؟) .



کله چې د حضرت بشر بن الحارث ρ ځانکدن شو وربانديې سخت وو چا ورته وویل : ژوند د ډېر خوښ دی ...؟ ده وویل : الله χ ته وړاندې کېدل ډېر سخت دي .



د صالح بن مسمار ρ ځانکدن وو چا ورته وویل : د خپل اولاد او عیال په اړه چاته وصیت نه کوې؟

ده وفرمایل : زه شرمېږم چې د ﷲ χ نه بغیر بل چاته د دوی په اړه وصیت وکوم .



کله چې د حضرت ابو سلیمان الداراني ρ ځانکدن وو څه ملګري یې ورته راغلل ورته یې وویل : زیری قبول کړه ځکه ته غفور رحیم رب ته ورځې ده ورته وویل : "ألا تقولون: احذر ! فإنك تقدم على رب يحاسبك بالصغير ويعاقبك بالكبير؟." (ولې داسې نه وایاست : وډار شه ځکه ته داسې رب ته ورځې چې په وړو به در سره حساب کوي او په لویو به عذاب درکوي) .



د حضرت ابو بکر الواسطي ρ ځانکدن وو خلکو ورته وویل : موږ ته وصیت وکوه ده ورته وویل : خپل حقونه وساتئ (د چا چې کوم حق در باندې وي هغه مه ضائع کوئ)



د یو عالم ځانکدن وو ښځې یې ژړل ده ورته وویل : ولې ژاړې؟ هغې ورته وویل ستا په حال ژاړم ده ورته ویل : که ژاړې نو د خپل ځان په اړه وژاړه ما د دې ورځې لپاره څلویښت کاله ژړلي دي .



حضرت جنید ρ فرمایي :زه سري السقطي ρ ته په هغه بیماري کې ورغلم چې دی له هماغې نه بیا وفات شو ما ورته وویل څنګه یې؟

ده راته په شعر کې ځواب راکړو او راته یې وویل :

**كيف أشكو إلى طبيبي ما بي *** والذي بي أصابني من طبيبي**

ترجمه : طبیب ته څه شکایت وکړم چې مې ټول رنځ د خپل د طبیب د لاسه وینه

بیا مې د لاس پکه را واخیسته ورته مې وهله ده راته وویل : چې د ننه ځوک سوزي هغه به د پکې په هوا څه پوه شي؟



ابو العباس بن عطاء ρ حضرت جنید ρ ته پداسې حالت کې ورغلو چې د هغه ځانکدن وو سلام یې وربانډې واچولو خو هغه ځواب ورنه کړو څه ساعت تېر شو بیا یې ورته وویل : **وعليكم السلام** بښنه غواړم زه مې په وظیفه کې وم دا خبره یې وکوله مخ یې قبلې ته کړو او ساه یې ورکړه . **سبحان الله** په ځانکدن کې خپله وظیفه او بیا دماغ دومره په ځای چې له چانه بښنه غوښتل چې د هغه د سلام ځواب یې زر ورنه کړو ..



حضرت كناني ρ ته چا په ځانكدن كې وويل : ستا عمل څنګه وو؟ ده وويل كه مې ځانكدن نه واى نو نه مې درته ويل زه د خپل زړه په دروازه باندې څلوېښت كاله لكه پهره دار داسې ولاړ وم چې هلته به هرشى راغلل چې د اللهχ لپاره به نه وو نو ما به د ننوتلو اجازه نه وركوله .



حضرت معتمر ρ فرمايي : زه په هغه كسانو كې وم چې حكم بن عبد الملك ته په هغه وخت كې ناست وو چې د هغه ځانكدن وو ما وويل : اى اللهχ په ده باندې ځانكدن اسان كړه ځكه دا داسې داسې انسان وو او دده صفتونه مې ياد كړل پدې وخت كې دى د ځانكدن په سختي كې لكه بې هوښه داسې وو كله چې را بيدار شو ويې ويل : دا خبرې چا كولې؟ ما ورته وويل : دا زه وم .. ده وويل : ماته مللك الموت ν وويل : هغه څوک چې سخي وي زه د هغه سره نرمي كوم دا خبره يې وكوله كلمه يې وويله او ساه يې وركړه .



كله چې د حضرت يوسف اسباط ρ ځانكدن وو فرياد او شكايت يې كاوه حذيفه ρ ورته وويل : اى ابا محمد دا دومره فرياد او شكايت؟ ده وويل هو ابا عبد الله زه به فرياد او شكايت ولې نه كوم زه پدې نه يم پوه چې ما به كوم يو عمل په رښتيا سره د الله χ لپاره كړى وي ؟ حذيفه ρ وفرمايل : تعجب دى د اسې نېک سړي لپاره چې د ځانكدن په وخت كې پدې قسم خوري چې دى پدې نه

دى پوه چې ده به كوم كار په رښتيا د الله χ لپاره كړى وي ..



د حضرت رويم ρ ځانكدن وو چا ورته وويل : **لا اله الا الله** ووايه ... دى مُسكى شو او ويې فرمايل : وايم يې ددېنه بغير خو زما هېڅ شى هم سم نه دي زده .



امام مزني ρ پداسې حالت كې امام شافعي ρ ته ورغلو چې هغه سخت بيمار وو او يو څه وخت وروسته وفات شو ده ورته وويل : ابا عبد الله شپه د څنګه وه؟ ده ورته وويل : پداسې حالت كې مې صبا كړو چې له دنيا نه تلونكى يم ، د ملګرو نه جدا كېدونكى يم ، د خپل بد عمل سره ملاقات كونكى يم ، د مرګ د جام څښونكى يم ، د الله χ حضور ته وړاندې كېدونكى يم ، او زه پدې نه پوهيږم چې زما روح به جنت ته ځي چې مباركي وركړم او كه به دوزخ ته ځي چې غمرازي ورسره وكړم؟ .



اصمعي فرمايي كله چې زما نيكه علي بن الاصمع ς ځانكدن ته نېږدې شو نو خپل زامن يې را وغوښتل او ورته يې وويل :

زه تاسې ته يو نصيحت كوم چې په خلكو كې داسې ژوند وكوئ چې ترڅو تاسې په خلكو كې وئ نو هغوى تاسې ته رجوع كوي او لتاسې سره كيني او

پاخيږي او کله چې تاسې مړه کېږئ نو هغوی په تاسې باندې وژاړي .[1]



امام ابن کثير ς فرمايي : ابن حامد الوراق ς حج ته په پښو باندې روان وو په لاره کې د څه مشکلا تو له امله خلک په دښته کې له تندې سره مخامخ شول ده مبارک په ګرمي کې يو شي ته تکيه وکوله او د تندې آخري حد ته رسېدلی وو يو کس ورته لږ اوبه راوړې

ابن حامد ς ورته وويل : دا اوبه د له کومه کړې ؟

هغه کس ورته وويل : دا اوس ددې وخت نه دی چې موږ وګورو چې اوبه له کومه ځايه راغلې دي (چې د حل او حرمت په اړه يې فکرمن شو) زر کوه اوبه و څښه .

ده وويل : هو همدا ددې وخت دی چې موږ بايد پوښتنه وکوو چې دا اوبه له کومه را وړل شوي دي ځکه دا د الله δ سره د ملا قات وخت دی او لدې خبرې سره يې ساه ورکړه او وفات شو .[2]



حضرت ابو هريره I د ځانکدن په وخت کې وژړل .

چا ورڅخه پوښتنه وکوله : ولـــــــــې ژاړې؟

1 **موسوعة ابن أبي الدنيا**
2 **البداية والنهاية**

ده مبارک I وویل : ستاسې پدې دنیاګۍ پسې نه ژاړم بلکه ژاړم په خپل اوږده سفر او کمه توښه باندې زما شپه په یوه لوړه باندې را روانه ده چې یا به له هغه لوړې نه د اور او یا جنت لوري ته ور غورځېږم او زه اوس پدې نه پوهېږم چې زه به کوم لوري ته ولوېږم .[1]



حضرت عمر بن الخطاب I فرمایل : د هغه کس سره په خوا کې کینئ چې د هغه ځانکدن وي ځکه هغه داسې شیان وینې چې تاسې یې نه وینئ او هغه ته په خوله کې د شهادت کلمه ورکړئ .[2]



د حضرت زید بن اسلم ç نه روایت دی هغه فرمایي : کله چې په مسلمان باندې کومه ګناه پاتې شي چې ده کړې وي او د هغې په بدل کې ده کوم نېک عمل نه وي کړی نو ځانکدن وربانديې سخت شي ترڅو هغه ګناه له ده څخه لرې کړل شي او په آخرت کې سیده جنت ته د تللو مستحق شي او کله چې کافر کوم نېک عمل وکوي چې د هغه ځانکدن شي نو مرګ ورته اسان شي ترڅو په دنیا کې د هغه نېک عمل بدله ورکړل شي او په آخرت کې سیده جهنم ته د تللو مستحق شي .[3]



1 موسوعة ابن ابي الدنيا
2 موسوعة ابن أبي الدنيا
3 موسوعة ابن أبي الدنيا

د یرموک په ورځ کله چې حضرت حارث بن هشام I، عکرمة بن ابي جهل I ، عیاش بن ربیعة I ټول زخمیان وو حارث د څښلو لپاره اوبه وغوښتې د ځانکدن حالت یې وو چې هغه ته اوبه ورکول کېدلې عکرمه I ورته وکتل هغه وویل : څه ورشه اول یې هغه ته ورکړه چې هغه اوبه څښل غوښتل عیاش بن ابي ربیعة I ورته وکتل عکرمه I وویل : اول یې عیاش ته ورکړه ترڅو چې اوبه ورکونکی حضرت عیاش I ته رسېدو هغه وفات شو چې بېرته را ستون شو دا دواړه هم په شهادت رسېدلې وو .[1]



عبد العزیز بن رواد ; فرمایي : یو کس ته ورغلم چې د هغه ځانکدن وو ما ورته وویل : ووایه **لا اله الا الله** هغه ویل **لا اله الا الله** یو څه وخت تېر شو بیا چې ما ورته وویل : **لا اله الا الله** ... ده راته وویل : څو ځله یې ووایم ؟ دا ته چې څه وایې زه دا بیخي منم نه ... او په همدې کې یې ساه ورکړه ما یې له ښځې نه پوښتنه وکوله چې ددې خاوند د څه حال وو دده آخره خو ماته ښه ښکاره نه شوه دده څه اعمال وو؟ هغې راته وویل : ده ټول عمر په شرابو کې تېر کړو او ډېر زیات او همېشه یې څښل پدې ځای کې به عبد العزیز بن ابي رواد ; فرمایل : له ګناهونو څخه ځان وساتئ چې ایمانونه مو سلامت شي .[2]



1 عیون الاخبار
2 موسوعة ابن أبي الدنیا

عمرو بن العاص I چې کله جوړ وو هغه به ویل چې زما خوښیږي چې یو هوښیار سړی وای په هغه باندې مرګ تېر شوی وای ما لیدلی وای بیا هغه ماته د مرګ قصه کړې وای چې مرګ څنګه وي کله چې دده ځانکدن وو او بیماري وربانډې سخته وه چا ورته وویل : تا به ویل چې زما خوښیږي چې یو هوښیار سړی وای په هغه باندې مرګ تېر شوی وای ماته یې ویلي وای چې مرګ څنګه وي اوس ته موږ ته ووایه مرګ څنګه حالت دی؟ ده وویل : زه داسې محسوس کوم لکه زمکه او اسمان چې له یوبل سره سریښیږي او زه د دوی دواړو په مینځ کې بندي یم او ماته داسې ښکاره کیږي لکه زما نفس چې د ستنې تر سپم (سوري) وزي .



هغه کس چې مړ کیږي نو ژوندي خلک چې مسلمانان ورته په خوا کې ناست وي د دوی وظیفه ده چې هغوی ته تلقین وکوي یعني د هغه په وړاندې کلمه ووایي ترڅو یې هغه هم ووایي او د هغه د ژوند آخره جمله او خبره کلمه شي کله چې دیو کس دکاندار ځانکدن وو نعوذ با لله په خوا کې مسلمانانو ورته د کلمې تلقین کولو ده به ویل دری نیمې ، څلور نیمې .... د یو بل مالدار سړي ځانکدن وو خلکو ورته د کلمې تلقین کول ده د یو کور په اړه خبرې کولې پدې کور کې به داسې وکوئ دا به یې داسې کړی فلانی باغ به داسې جوړ کړئ د یو کس په خوا کې چې ناستو خلکو کلمې ویل شروع کړل هغه کس چې ځانکدن یې وو موسیقي او بدل یې شروع کړه ځکه دده دماغ او ذهن ټول هغه بدل اخیستي وو الله δ دې مسلمان

لداسې حالت نه وساتي او الله δ د ټولو مسلمانانو ته په ځانكدن كې كلمه په نصيب كړي .[1]



حضرت ابي الدرداء η ته په هغه بيماري كې وويل شول له كومې نه چې هغه وفات شو : له څه نه درته تكليف دى؟

ده مبارك η وويل : له خپلو ګناهونو څخه .

خلكو ورته وويل : څه ته د زړه كيږي؟

ده η ورته وويل : د الله χ مغفرت او بښنې ته .

خلكو ورته وويل : طبيب درته راولو چې د وګوري كه علاج د وكوي؟

ده η ورته وويل : په ما باندې دا بيماري زما خپل طبيب ايښى ده .



حضرت سعيد بن عطيه ρ په ځانكدن كې په ژړا شو چا ورڅخه پوښتنه وكولې ولې ژاړې؟

ده ورته وويل ژاړم به نه چې زه اوس لږ ساعت وروسته يو مجبور انسان كېږم او ملائكې به ما په خپل طبيعت چېرته بيايي او زه نه يم خبر چې چېرته به مې بوزي .

---

[1] كتاب الزهدلابن مبارك ؏

# حضرت خالد بن ولید η

کله چې د حضرت خالد بن ولید η ځانکدن شو ویې فرمایل : **ما كان في الأرض من ليلة أحب إليَّ من ليلة شديدة الجليد في سرية من المهاجرين ، فعليكم بالجهاد.**

ترجمه : په زمکه کې ماته له هغه شپې نه بله غوره شپه نه وه چې کله زه په یخه شپه کې د مهاجرینو مجاهدینو په ټولګي کې وتلی وم تاسې جهاد مه پرېږدئ .

بیا یې ویل : **لقد اندق في يوم مؤتة تسعة أسياف في يدي، فما صبرت معي إلا صفيحة يمانية.**

ترجمه : د موتة د جنګ په ورځ زما په لاس کې نه توري ماتې شوې (یوه به چې ماته شوه بله به مې را واخیسته) او زما په لاس کې صرف یوه صفیحة یمانیة توره ټینګه شوه .

## حضرت واثلة بن اسقع η

حضرت اوزاعي ρ د حضرت واثلة بن اسقع η له لور خصلة υ نه پوښتنه وکوله : تا له خپل پلار نه څه آورېدلي دي ؟

دې مبارکې وویل : کله چې د هغه ځانکدن شو زما لاس یې په لاس کې واخیست راته یې وویل : لورې صبر کوه لکه دا د لاس ګوتې چې شمارې صبر کوه صبر کوه صبر کوه صبر کوه صبر کوه بیا یې زما بل لاس په لاس کې واخیست او راته یې وویل بچی صبر کوه او بیا وفات شو .

## حضرت عبد الله بن عائذ η

کله چې دده مبارک ځانکدن شو حضرت خصیف بن حارث ρ ورته وویل : که د چېرته په وس کې وو چې موږ ته د مرګ په اړه ووایې چې څنګه واقع شو او ته د مرګ نه وروسته څنګه یې نو موږ ته ووایه ...

څه وخت تېر شو بیا یې په خوب کې ولیدو ده ورته وویل : تا موږ ته د مرګ په اړه ونه ویل ..؟ هغه ورته وفرمایل : الله χ موږ ته نجات راکړو لداسې مشکلاتو څخه نجات اسان کار نه وو لکن موږ پیدا کړو رب غوره رب .. زموږ ګناهونه یې راته وبښل او له ګناهونو څخه را تېر شو مګر یوازې د احراض نه (له هغې را تېر نه شو) ده ورته وویل : دا احراض څه شی دي؟ هغه وفرمایل : هغه چې خلک ورته په ګوته سره اشاره

كوي ..... (يعني د هغه كسانو لپاره سخته وه چې هغوى مشهور وو) .[1]

## حضرت عبد الله بن عمر η

كله چې د حضرت عبد الله بن عمر η ځانكدن شو ويل يې ورشئ فلانى (په قريشو كې يې د يو كس نوم ياد كړو) راته راولئ ما له هغه سره وعده كړې وه چې زه به هغه ته خپله لور په نكاح وركوم او زه نه غواړم چې د نفاق له دريمې برخې سره

لاړ شم رسول الله γ د نفاق لپاره درى نښې يادې كړي دي او يوه دا ده چې كله هغه وعده كوي بيا مخالفت ورځخه كوي او زه اوس تاسې پدې باندې ګواهان كوم چې ما خپله لور هغه ته په نكاح وركړېده .[2]

## حضرت معاوية η

كله چې د حضرت معاوية η ځانكدن شو خپل مخ مبارك به يې په خاورو كېښود او بيا به يې د مخ بل لورى وربانديې كېښود او فرمايل به يې : اى الله χ تا فرمايلي دي : **إِنَّ اللَّهَ لا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ** .[3]

ترجمه : بېشكه الله χ نه بښي دا چې دده سره شريك ومنل شي او ددېنه بغير هره بله ګناه بښي چې دده خوښه شي .

---

[1] طبقات ابن سعد

[2] تذكرة الحفاظ

[3] سورة النساء آية ٤٨

ای الله χ مـا پــه هغـه کسانــو کې کړه چې ستـا ورتــه د بــښـنې خـوښـه شوې وي .

# حضرت عبد الله بن عبد العزيز بن عبد الله ρ

لوی عالم وو کله یې چې ځانکدن شو ویل یې : زه
د الله χ نعمت ښکاره کول غواړم که چېرته دنیا
ټوله زما تر پښه لاندې شي او ما ته یې اخیستل
دومره اسان وي چې صرف زه خپله پښه ورځخه لرې
کړم .. نو زه به خپله پښه ورځخه لرې نه کړم
او دا لما سره اوه درهمه دي چې په خپل لاس مې
ګټلي دي او ددېنه بغیر لما سره څه شی نشته
...

# حضرت یونس بن عبید ρ

کله یې چې ځانکدن شو خپلو پښو ته یې کتل او
ژړل یې چا ورته وویل : ولې ژاړې؟

ده مبارک ρ وفرمایل : دې خپلو پښو ته ژاړم چې
ما د الله χ په لاره کې په ګردونو باندې ګردجنې
نه کړې او پدې پښو باندې زه جهاد ته لاړم نه
اوس پدې باندې ارمان راځي .

# حضرت عمرو بن شرحبیل ρ

کله چې دده مبارک ځانکدن شو ده ρ وفرمایل :
زه اوس خوشحال یم چې مړ کېږم او زه صرف په
قیامت کې د را پاڅېدلو څخه ډاریږم او همدا یو
شی دي چې زما په زړه باندې پراته دي ، نه مې
مال پریښی دی ، نه را باندې د چا قرض پاتې دی
، او نه رانه وروسته ماشومان پاتې دي چې زه
یې له امله غمجن وم ، زه چې کله مړ شوم زما
په وجه هېچا ته تکلیف مه ورکوئ ، کله چې زما

جنازه پورته کړئ نو تیز ځئ ، زما په قبر باندې یوازې خاورې واړوئ او ډېر یې مه پورته کوئ ځکه ما لیدلي چې د مهاجرینو صحابه وو φ کرامو به دا نه خوښېدل .

## حضرت ابراهیم بن یزید النخعي ρ

کله یې چې ځانکدن شو ده مبارک ژړل کله چې چا ورځخه د ژړا د وجې پوښتنه وکوله ده مبارک وویل : زه د ملكُ الموت ν انتظار کوم او زه پدې نه یم پوه چې ما ته به د جنت زیری راکوي او که د دوزخ ..

## حضرت ابراهیم بن هانئ ρ

کله چې دده مبارک ځانکدن شو خپل زوی اسحاق ته یې وویل : تږی یم .. کله چې اوبه ورته راوړل شوې ویل یې : لمر غورځېدلی دی؟ بېرته یې اوبه کېښودې بیا یې له ځان سره ویل : لِمِثْلِ هَذَا فَلْيَعْمَلِ الْعَامِلُونَ [1] (عمل کونکي د داسې حالت لپاره عمل وکوي) . په همدې حالت کې یې ساه ورکړه او روژه یې وه .

## حضرت أبي بکر بن عیاش تابعي ρ

کله چې دده ρ ځانکدن شو زوی یې په ژړا شو ده مبارک ورته وویل : ولې ژاړې؟ ته دا فکر کوې چې الله χ به ستا د پلار څلوېښت کاله هغه عبادت ضائع کړي چې په هره شپه کې به یې قرآن کریم ختمولو؟ ...

---

[1] سورة الصافات آیة 61

بچيه پدي كوټه كې چې ګناه ونه كوې پدې كې ما ١٧٠٠٠ (اولس زره) ختمه كړي دي ...

## ابي الحسن اسمعيل ρ

حضرت احمد بن حفص ρ فرمايي زه ابي الحسن اسمعيل ρ د حضرت ابي عبد الله پلار ته پداسې حالت كې ورغلم چې د هغه ځانكدن شروع وو هغه وويل :

زما په مال كې نه د حرامو درهم شته او نه د شبهې كوم درهم پكې شته (ټول مال مې په ښه اهتمام سره صرف حلال مال را ټول كړى دى) كله چې ما دا خبره واورېده نو په زړه كې راته پوره سمه ښكاره نه شوه ځكه د ټول مال په اړه چاته هرڅه نه وي معلوم ... زوى ابو عبد الله يې ماته وكتل او راته يې وويل : انسان د مرګ په وخت كې صرف رښتيا وايي .

## عبد الرحمن السلمي ρ

حضرت عطاء بن سائب ρ فرمايي : موږ روان شوو چې حضرت عبد الرحمن السلمي ρ ته ورشو او په ځانكدن كې څه وخت ورسره كينو هغه ته به د الله χ رحمت ور ياد كړو ترڅو يې الله χ ته او د هغه رحمت ته تمه پيدا شي چې ده ته ورغلو ده مبارك ρ ويل : زه خپله د رب نه اميد لرم اتيا رمضانه مې ورته په اخلاص او صفايي سره روژه نيولې ده ...[1]

## ابي اسحاق حربي ρ

---

[1] سير اعلام النبلاء

دا د حضرت امام احمد ρ شاگرد وو ده مبارک ρ به ویل : هغه کس چې په خپل تقدیر (کوم شی چې ده ته مقرر وي) خوشحال وي هغه په خپل عیش کې نه خفه کیږي او هغه چې د الله χ په فیصله باندې راضي نه وي او د الله χ فیصلې ته تسلیم نه وي هغه په خپل عیش هېڅ مزه نشي اخستلی ده مبارک ویل زما څلوېښت کاله په سر درد وو پدې څلوېښتو کلونو کې ما وربانديې هېڅوک نه وو خبر کړي (الله χ ته مې صبر کړی وو) او شل کاله زما په سترګه کې څه مشکل راغلو ما په یوه سترګه لیدل کول او پدې شلو کلونو کې ما وربانديې هېڅوک هم خبر نه کړل او اویا کاله یې له خپل کور سره داسې تېر کړل چې له چا نه یې خوراک نه وو غوښتی که به له کوره دده کوټې ته کوم شی راغلل نو وبه یې خوړل او کنه نو صبر به یې کولو دده یو ملګری دده په بیماري کې له کومې نه چې دی وفات شوو دده پوښتنې ته ورغلو دده مبارک یوه لور وه هغې د سخت ژوند له امله شکایت وکولواو ویې ویل : زموږ په کور کې صرف وچه ډوډۍ او مالګه دي او مالګه هم کله کله نه وي ده ورته وویل : بچۍ ته د غربت نه ډاریږې او شکایت ترې کوې؟ هغه کونج ته وګوره هلته ما دولس زره د حدیثونو اجزاء لیکلي دي او هغه هر یو په یوه درهم باندې په منډه خرڅیږي نو چې ته د ورځې یو هم خرڅوې ستا ګذاره پرې کیږي او څوک چې په کور کې دولس زره درهمه ولري هغه ته غریب نه ویل کیږي هغه مالدار وي ..

# حضرت جنید ρ

کله چې د حضرت جنید ρ ځانکدن شو نو ده مبارک تلاوت کاوه او مونځ یې کاوه چا ورته وویل : لږ به دې په ځان نرمي کړې وه لږ آرام به د کړی وو ستا بیماري ډېره سخته ده ..

ده مبارک ورته وویل : زه چې پدې اوس وخت کې نېک عمل ته څومره محتاج یم زما نه ورته بل څوک زیات احتیاج نه دي اوس زما د عملونو کتاب نور بندیږي زه غواړم چې دا تلاوت او مونځ مې هم پکې ولیکل شي نو بیا بند شي .. په همدې عبادت تلاوت او مانځه باندې مصروف وو تردې چې ساه یې ورکړه ..

# امام کاساني ρ

کله چې د حضرت کاساني ρ ځانکدن شو د سورة ابراهیم تلاوت یې شروع کړو چې کله دې آیت ته ورسېدو ..

**يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ** . [1]

ترجمه :مضبوطوی الله χ هغه کسان چې ایمان ئی راوړی دی په خبره ثابته سره په ژوندون د دنیا (په وقت د فتنې او مرګ) کې او په آخرت کې (یعنی په قبر کې) او ښویوي الله χ ظالمان (له دغی ثابتې خبرې او هیروي ئې ترې په دنیا او عقبی کې) .

[1] سورة ابراهیم آیة ٢٧

نو چې پدې ټکي يې تلفظ کاوه **وَفِي الْآخِرَةِ**... لدې سره يې ساه ورکړه ..

## حضرت اسماعيل النساج ρ

د وفات قصه يې په البداية و النهاية کې ذکر کړل شوېده کله يې چې د وفات وخت شو د کوټې کونج ته يې وکتل او ويې ويل : پاڅېږه الله χ د په تا باندې رحم وکوي ته يو داسې بنده يې چې تاته امر کړل شوى دى او زه هم يو داسې بنده يم چې ماته امر کړل شوى دى او هغه چې تاته پرې امر کړل شوى دى هغه پاتې کېدلى شي او هغه چې ماته وربانديې امر کړل شوى دى هغه نه پاتې کيږي بيا پاڅېدو ، اودس يې وکولو ، مونځ يې وکولو د کوټې په کونج کې اوږد وغزېدو (څملاستو) او وفات شو ..

## حضرت عبد الله بن ادريس ρ

کله چې د حضرت عبد الله بن ادريس ρ د وفات وخت شو په خوا کې يې لور ناسته وه په ژړا شوه ده ورته وويل : لورې مه ژاړه ما پدې کور کې قرآن کريم څلور زره ځله ختم کړى دى او دا ټول مې د خپل دې حالت لپاره ختم کړى دى.

## حضرت عامر بن عبد الله ρ

حضرت عامر بن عبد الله ρ د ځانکدن په حالت کې وو د کور خلک يې شاوخوا ته ناست وو ورته ژړل يې دده حالت ډېر خراب وو چې پدې وخت کې د ماښام اذان وشو ... شاوخوا يې چې څوک ناست وو هغوى ته يې وويل : له لاس نه مې ونيسئ ...

دوی ورته وویل : چېرته ځې؟

ده مبارک ρ وویل : جومات ته ځم ...

دوی ورته وویل : پدې وخت کې؟ ... ته خو ډېر په تکلیف کې یې دا وخت ددې نه دی چې ته جومات ته لاړ شې ..

ده مبارک ρ وفرمایل : سبحان الله ... زه به د اذان اواز آورم او مانځه ته به نه ځم ..؟

تر لاس مې ونیسئ او جومات ته مې بوزئ تر لاس یې ونیولو او جومات ته یې بوتلو دوه کسان یې په یو طرف بل طرف کې روان وو په اوږو یې پورته کړی وو جومات ته یې بوتلو په مانځه یې شروع وکوله له امام سره یې یو رکعت کړی وو د سجدې په حالت کې یې ساه ورکړه ...

## حضرت عبد الرحمن بن اسود ρ

په ځانکدن کې په ژړا شو چا ورته وویل ولې ژاړې تاته خو الله χ ډېر لوړ شان در کړی دی (په عبادت ، تقوی عاجزي او خشوع کې) ؟ ده مبارک ρ وفرمایل : زه یوازې پدې ژاړم چې له مانځه او روژې نه جدا کېږم ... ددېنه وروسته به زه نه مونځ کولی شم او نه به روژه نیولی شم ..

## يو مالدار سړی

امام قرطبي ρ د يو مالدار سړي د ځانكدن واقعه ذكر كړېده چې كله يې ځانكدن شو زامن يې ورته را ټول وو ده ته يې كلمه وويله ... دی چُپ وو (كلمه يې تكرار نه كړه) زامنو يې ورته بيا وويله ... ده پداسې حالت كې چې نفس يې په وتلو كې وو او اواز يې پوره نه وتلو ويل : په فلاني كور كې لږ كار پاتې دی هغه به پكې وكوئ ، په فلاني باغ كې به د راتلونكي كال لپاره فلانی شی وكرئ ... د فلاني دكان له مالك نه به دومره پيسې واخلئ په همدې خبرو كې يې ساه وركړه ...

پداسې حالت كې كور ، باغ او دكان او ټول مال ورڅخه پاتې شو اوس به يې وارثان دده مال نه بلكه خپل مال ګڼي .

## يو تجار

امام ابن قيم ρ د يو تجار واقعه ذكر كوي چې كله يې ځانكدن شو په خوا كې خلكو ورته كلمه ويله ده ويل ... دا ټوټه ارزانه ده ، دا سودا ډېره ښكلې ده . پدې كې ښه ګټه كيږي .... په همدې خبرو كې آخته وو چې ساه يې وركړه .

## يو شرابي

حضرت ابن قيم ρ د يو شرابي د ځانكدن واقعه ذكر كړېده چې هغه به هر وخت د شرابيانو سره كېناستو او شراب به يې ورسره څښل چې كله يې ځانكدن شو په خوا كې ورسره يو كس ناست وو ډېره يې كلمه تكرار كړه لكن ده ورسره نه ويله بالآخره يې ورته وويل : اې وو ايه لا اله الا الله ...

د هغه مخ بدل شو او رنګ یې متغیر شو او ژبه یې درنده شوه ...

ملګری یې وارخطا شو چې هسې نه دا د کلمې ویلو نه بغیر مړ شي نو بیا یې ورته وویل اې ووایه لا اله الا الله ...

هغه ده ته وکتل او بیا یې ورته وویل : نــــــه ... اول یې ته وښه بیا یې زه ښم ... اول یې ته وښه بیا یې ماته راکړه ... په همدې خبرو کې وو چې ساه یې ورکړه .

## یو شرابي انسان

امام صفدي ρ د یو بل شرابي کس واقعه ذکر کړیده چې هغه به شراب څښل او دومره به یې څښل چې پوره به نشه شو ... او کله به چې دې حالت ته ورسېدو نو په بام ویده کېدو ددې له ډاره چې هسې نه په نشه کې پاڅیږي او له بام نه وغورځیږي نو خپله ښه به یې په پړي تر کوم شي پورې وتړله بله شپه پاڅېدلی وو او څرنګه چې رسۍ یې لږ اوږده پرېښودې وه نو دی تر بام را غورځېدلی وو لکن تر زمکې پورې نه وو رسېدلی ځکه ښه یې پاس تړلې وه او د زمکې او بام په مینځ کې ځړېدلی وو تردې چې په همدې حالت کې یې ساه وتلې وه .. (نعوذ با لله)

## يو د شرابو معتاد

په انموذج الزمان کې يوه واقعه نقل شوېده چې محمد بن المغيث يو فاسق سړی وو هر وخت به د شرابو په نشه کې وو او له شراب خانې څخه به زر نه راوتلو ..

کله چې بيمار شو او ځانکدن يې وو اندامونه يې سره سست شوي وو ، زور يې ختم شوی وو په خوا کې يو کس ورسره ناست وو پوښتنه يې تري وکوله : په بدن کې دې زور شته ؟ تلی شې؟ ...

ده ورته وويل هو : چې پاڅېږم تر شراب خانې پورې خو تلی شم ...

دې کس ورته وويل : اعوذ با لله داسې دې ونه ويل چې هو تر جوماتت پورې تلی شم ...

دی په ژړا شو ورته يې وويل : اوس څه وکوم .. زه د جوماتت په تلو عادت نه وم...

## يو کس شرابي

ابن ابي رواد فرمايي يو کس ته ورغلم چې ځانکدن يې وو په خوا کې کسانو ورته د کلمې تلقين کولو لکن ده ونشوای ويلی او ژبه يې درنده شوه دوی ورته بيا بيا کلمه تکرار کوله

او بيا بيا دوی ورته الله χ يادولو لکن هغه په تکليف کې وو ... غږ يې نه کولو او نه يې له دوی سره کلمه ويله تردې چې نفس يې تنګ شو او د روح د وتلو وخت يې شو يو اواز يې وکولو (دی **لا اله الا الله** بالکل نه مني) **نعوذ با لله** ... دا خبر يې وکوله او ساه يې ورکړه ..

کله مو چې دفن کړو زه راغلم د دوی په کور کې مې له چا پوښتنه وکوله چې دده خاتمه ماته ښه ښکاره نه شوه ده څه عملونه کول؟

راته یې وویل : دا د شرابو معتاد وو ...

## یو کس د موسیقي شوقي

امام ابن قیم ρ د یو کس واقعه ذکر کړېده چې موسیقي یې زیاته خوښېده کله یې چې ځانکدن شو خلکو ورته لا اله الا الله ویل لکن د ده د کومې بدلې څه بیتونه په خوله کې وو او هماغه یې تکرار کول حالت یې ورو ورو خرابېدو دوی ورته بیا بیا کلمه تکرار کوله او هغه چې هغه د بدلې څه ټوټه تکرار کوله بیا یې د موسیقي پیښې په خوله سره کولې او ویل یې تنتنا ... تنتنا .. په همدې کې یې ساه ورکړه او کلمه یې ونه ویله .

## تارک الصلاة (مونځ پرېښودنکی)

امام ابن قیم ρ د یو کس واقعه ذکر کړېده چې هغه مونځ نه کولو په نورو ګناهونو کې هم ډوب وو پدې وخت کې ورته مرګ راغلو کله یې چې ځانکدن وو د کور خلک او نور د چم ګاونډ خلک

ورته را ټول شول دوی شروع وکوله چې ده ته الله χ وریاد کړي او کلمه یې ورته ویله چې دی یې هم ووایي لکن ده څه نه ویل او په کلمه یې تلفظ نه کاوه کله چې دده حالت ډېر زیات خراب شو نو خوله یې وښوروله ویې ویل : داده زه به ووایم لا اله الا الله ... خو لا اله الا الله څه فایده کوې؟ ما ته نه دي یاد چې ما د الله χ لپاره یو مونځ هم

کړی وي ... دا خبره يې وکوله او ساه يې ورکړه ...

## په الله χ باندې بد ګمان

حضرت ابن جوزي ρ د يو کس په اړه ذکر کړي دي چې هغه په تکليف کې وو او ځانکدن يې وو په خپله بيماري کې يې ويل : الله χ اوس په ما امتحان کوي ... يره که ما ته يې سيده جنت راکړی وای نو څه به شوي وو ... ؟ پدې امتحان کې څه فايده ... بيا به يې الله χ ته خطاب کاوه ای ربه دا ته په ما تکليف راولې په ما امتحان راولې پدې امتحان کې څه فايده ده ...

په خوا کې خلکو کوښښ کولو چې ده ته په خوله کې کلمه ورکړي لکن ده کلمه ونه ويله او په همدې خبرو کې يې ساه ورکړه .

## سطرنج کونکی

يو کس چې هر وخت به يې سطرنج کاوه او دا لوبه يې خوښه وه کله يې چې ځانکدن شو خلکو ورته د کلمې تلقين کاوه دی به چُپ وو بيا به يې يو دم وويل ... کېش .... او نور هماغه الفاظ يې ويل کوم به چې ده د لوبې په وخت کې ويل او تر آخره يې کلمه ونه ويله او په همدې حالت کې يې ساه ورکړه .

# زيات درود ويونكى

كله چې يو عالم د يو بېمار پوښتنې ته ورغلو ويې ليدل چې هغه د ځانكدن په حالت كې دى ...

پوښتنه يې ورځخه وكوله : څنګه يې ؟

بيمار ورته وويل : په خوله كې مې يو ډول خوږوالى راځي او ډېر ښه احساس كوم ..

عالم ورته وويل : پدې وخت كې؟ پدې وخت كې ته په خوله كې خوږوالى محسوس كوې او ښه احساس كوې؟ مرګ خو يو تريخ حقيقت دى خلك خو وايي چې پدې وخت كې زيات تكليف وي نو ته څنګه د خوږ والي او ښه احساس كوې؟

بيمار ورته وويل : ما يو وخت يو حديث واورېدو چې مطلب ئې وو : **من أكثر من الصلاة عليّ سوف لايجد السوء والأذى ساعة الاحتضار.**

ترجمه : څوك چې په ما باندې درود زيات وايي هغه به په ځانكدن كې تكليف او سختي نه محسوس كوي .

له هغې ورځې نه ما درود زيات كړى وو او ما به هر وخت په رسول الله γ باندې درود ويلو اوس هېڅ تكليف نه محسوس كوم .

# د حضرت عمر بن عبد العزيزρ نصيحت

حضرت عمر بن عبد العزيز ρ يو ځل خلكو ته تقرير كاوه او هغوى ته يې د مرګ ، ځانكدن او ملكُ الموت ν په اړه خبرې كولې زه دا خپل كتاب د هغه مبارك د خبرو په څه برخه سره ختموم هغه مبارك فرمايل :

اما بعد : زه تاسې ته وصيت كوم د الله χ نه په وېره سره او هر وخت د هغه لوري ته په توجه سره او په تقوى كولو سره ځكه تاسې په داسې يو ځاى كې ياست چې ډېر زر ده چې په دې اهل باندې به واوړي او تاسې به لدې نه د آخرت خوا ته لاړ شئ او الله χ په قيامت كې په هغه سخته ورځ كې د وړوكې ذرې پوښتنه هم كوي اى خلكو هغه مرګ ياد كړئ چې د هغه نه په هېڅ ډول خلاصى نشته او د الله χ دې كلام ته غوږ كېږدئ چې فرمايي : **كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ** (هر نفس د مرګ څكونكى دى) په بل ځاى كې الله χ فرمايي **كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ** (په دنيا كې چې هرشى دى فناء كېدونكي دي) په بل ځاى كې الله χ فرمايي : **قُلْ يَتَوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ** (ووايه چې تاسې به وفات كوي هغه ملكُ الموت ν چې په تاسې باندې مقرر كړل شوى وي بيا به تاسې خپل رب ته رجوع كوئ) په بل ځاى كې الله χ فرمايي : **فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ** (هغه ورځ به د دوى څه حال وي چې فرښتې هغه مړ كوي او وهي د هغوى مخونه او شا ګانې) .

ماته دا هم رسېدلې دي چې فرښتې دوى د اور په كمچينو وهي ..

ماتـه د ا هم را رسېدلـي دي چې مـلكُ الـموت ν تـه الله χ داسې بـدن ورکـړی دی چې سر يـې پـه اسمـان کـې وي او پـښې پـه زمـکه کـې وي او دا دنـيـا ټـولـه د هغـه پـه لاس کـې لـکه يـوه کـاسه داسې وي چې لـه کـومـه ځـايـه خوراک وکـول وغواړي نـو کـولـی يـې شي .

مـاتـه دا هم را رسېدلـې دي چې مـلكُ الـموت ν هر انـسان تـه ٣٦٦ ځـلـه ګـوري او دا چې مـلكُ الـموت ν پـه زمـکه کـې هر کـور تـه ٦٠٠ ځلـه ور ګـوري او مـلكُ الـموت ν پـه دنـيـا کـې ولاړ وي چې د دنـيـا هرشی هغـه تـه ښکـاره کـيـږي کـه وچـه ده کـه لـنده کـه لـوړه او ټـيـټـه ده هغـه تـه ښکـاره کـيـږي او دا ټـولـه دنـيـا د هغـه پـه وړانـدې لـکه وړوکـې هګۍ داسې ده او مـاتـه د ا هم را رسېدلـې ده چې د مـلكُ الـموت ν مـرستـنـدوی فـرښتـې دي الله χ پـه هغـوی بـانـدې عـالـم دی هغـوی داسې جوړې دي کـه مـلكُ الـموت ν هغـوی تـه امـر وکـوي چې اسمـانـونـه او زمـکې يـوه نـوړۍ کـړه نـو هغـه بـه يـې نـوړۍ کـړي او د مـلكُ الـموت ν نـه نـورې پـرښتـې داسې ډاريـږي لـکه انـسانـان چې لـه ځـنګـلي لـويـو حيـوانـاتـو څخه څنګه ډاريـږي او مـاتـه دا هم را رسېدلـې دي چې کـه مـلكُ الـموت ν هغـه فـرښتـو تـه ور نـېږدې شي چې هغـه حمـلـة الـعرش د الله χ غـوره فـرښتـې دي نـو هغـه بـه دومـره تـرېـنـه وډاره شې چې لـه ډار نـه بـه ويـلـې شي او مـلكُ الـموت ν چې کـلـه د بـنـده روح اخلـي هغـه يـې د نـوکـانـو او د غـوښې تـر مـيـنځ تـرېـنـه وبـاسي او دا روح چې د پـښو لـه خوا نـه را ټـولـيـږي لـه يـو بـنـد نـه چې بـل بـنـد تـه رسيـږي دا د تـورې لـه وار نـه سخت وي کـلـه چې روح حلـقـوم تـه را ورسيـږي نـو بـيـا مـلكُ الـموت ν تـرېـنـه روح واخلـي او دا مـلكُ الـموت ν چې کـلـه د مؤمـن سړي روح واخلـي نـو نـو پـه سپـيـنـه وريـښمـې

ټوټه کې يې کيږدي چې مسک پکې لګېدلې وي او کله چې د کافر روح واخلي نو په يوه توره ټوټه کې يې تاو کړي چې بد بويه او مرداره وي او له يوې زړې مردارې نه بد بوی کوي او په يو حديث کې راغلي دي چې کله د مؤمن مرګ را نېږدې شي نو څلور زره ملائکې ددې روح د احترام په موخه را ښکته شي او د مؤمن روح له بدن نه داسې را وباسي لکه د اوبو څاڅکی چې د هغه لوښې نه توئيږي چې اوبه پکې وي .



# ماخذونه

1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. صحيح البخاري
9. صحيح مسلم
10. سنن الترمذي
11. سنن النسائي
12. سنن أبي داود
13. سنن ابن ماجه
14. سنن الدارمي
15. سنن الدارقطني
16. شرح النووي على مسلم
17. فتح الباري شرح صحيح البخاري
18. حاشية السندي على ابن ماجه
19. عون المعبود
20. تحفة الأحوذي
21. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
22. السيرة النبوية (ابن هشام)
23. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
24. زاد المعاد
25. البداية والنهاية
26. جامع العلوم والحكم
27. سير أعلام النبلاء
28. بداية المجتهد ونهاية المقتصد

29. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
30. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
31. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
32. جمع الوسائل في شرح الشمائل
33. رد المحتار على الدر المختار
34. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
35. فتح القدير
36. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
37. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
38. القواعد النورانية الفقهية
39. أنوار البروق في أنواع الفروق
40. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين
41. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي
42. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين
43. القاموس المحيط
44. لسان العرب
45. النهاية في غريب الحديث والأثر
46. مختار الصحاح
47. الحاوي للفتاوي



# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد γ د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله پښتو
3. آشيانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګليسي
5. دين يې دام دی ددنيا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دين نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمکو جي او ليکوال
پښتو
10. اديان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دينونه
پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو
14. کل بچه
فارسي
15. معلومات عمومي فارسي

16. د حج لارښود پښتو او انګلیسي
17. محمد رسول الله γ سیرت اخلاق او پېژندنه پښتو
18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول پښتو
19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم پښتو
20. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریم پښتو
21. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه لسم پښتو
28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول پښتو
29. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دریم پښتو

31. د فقهي کتابونو له پانو څخه څلورم
پښتو
32. د فقهي کتابونو له پانو څخه پنځم
پښتو
33. د علم حديث مطالعه پښتو
او انګليسي
34. د فقهي کتابونو له پانو څخه شپږم
پښتو
35. کلمه طيبة پښتو
36. الدعاء
پښتو
37. اللهم عربي، پښتو،
انګلسي
38. المسجد
پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه
پښتو
40. سلام پښتو
41. د فقهي کتابونو له پانو څخه اومه برخه
پښتو
42. د وخت ا هميت (لمړی برخه)
پښتو
43. د وخت ا هميت (دوهمه برخه)
پښتو
44. د وخت ا هميت (دريمه برخه)
پښتو
45. الحكمة ١ پښتو
46. الحكمة ٢ پښتو
47. الحكمة ٣ پښتو
48. الحكمة ٤ پښتو

49. حتمي سفر (مرګ) پښتو

50. حتمي سفر (شهادت) پښتو

51. حتمي سفرل (قتل) پښتو

52. حتمي سفر (ځانکدن) ستاسې په لاس کې

